

# کله هم خپلو پټو ګناهونو ته ځیر شوي یئ؟

ليکنه: جاسم المطوّع
ژباړه: روح الله ساحل

له ثوبان رضی الله عنه څخه نقل شوی چې له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) څخه یې اوریدلي چې ویې ویل: داسې خلك پيژنم چې د قیامت په ورځ به د تهامه (سپينو غرونو) په اندازه نيکيو سره راځي اما الله (جل جلاله) به هغه ټول ورته هيڅ او بې ارزښته وشماري.

ثوبان وايي: ماوويل: اې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د هغه خلکو ځانګړتياوې راته بيان کړه تر څو مونږ د ناپوهی له وجې په هغوی ور ګډ نه شو.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل: هغوی د تاسو وروڼه او د تاسو د نسل نه دي، د تاسو په شان د شپې يوه برخه په عبادت او خلوت کې تيروي اما کله چې د الله له محارمو سره يوازې مخ شي نو بيا د الله (جل جلاله) د حريم مراعات نه کوي.

## ګرانو وروڼو!

تاسو ته توصيه کوم چې د خپل ژوند د تنهايی د شيبو نه پوره ګټه واخلئ!

زړې خو مو ليدلي چې کله په خاوره کې ښه پټ شي نو شين کيږي او ميوه ورکوي. ستاسو بدن هم د يو زړي په شان دی چې که د الله (جل جلاله) د خلوت په ځمکه يې ښه پټ کړې نو د ښه او صالح عمل ميوه به مو په برخه شي.

انسان چې په هره اندازه د الله (جل جلاله) سره په خلوت کې مخلص وي د مخ نور يې ډيريږي او د زړه له تله د قناعت او مړښت احساس کوي.

له ګناهونو نه په خاصه توګه له پټو ګناهونو نه ځانونه وژغورئ! په تنهايی کې تقوا غوره کړئ او د ګناه د ګردابونو نه په کلکه لرې واوسئ، داسې ونه انګيرئ چې څوك مو نه ويني، ځکه الله (جل جلاله) د انسانانو په ډيرو وړو غلطيو او ښوييدنو باندې خبر، ليدونکی او پوه دی.

له ابوالدرداء (رضی الله عنه) نه روايت دی چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل: مؤمن بايد پام وکړي تر څو له هغه ځايه چې د ده فکر نه ورته رسيږي د مؤمنانو د لعنت سره مخ نه شي.

وروسته يې وفرمایل: آيا پوهيږئ چې دا څنګه؟

مونږ ورته وويل: نه، نه پوهيږو.

ويې فرمايل: په تنهايی کې د الله (جل جلاله) څخه نافرماني کوي او الله (جل جلاله) هم پرته له دې چې دوی وپوهيږي د دوی په اړه د نورو په زړونو کې قهر اچوي.

## درونو وروڼو او خويندو!

له پټو ګناهونو نه په کلکه ځانونه وساتئ، همدا شان په ټولو حالاتو کې هغه که پټه وي او که ښکاره ځانونه پاك وساتئ. په پټه او ښکاره سره د الله (جل جلاله) شکر پر ځای کړئ او په پټه کې د ګناهونو نه د ځان ساتل د هغه د شکر ادا کول دي.

له جنيد بغدادي څخه د شکر په باره کې پوښتنه وشوه، هغه په ځواب کې وويل: د يوه نعمت شکرانه دا ده چې هغه د نعمت ورکوونکي د نافرمانی لپاره استعمال نه شي.

## خوږو دوستانو!

د الله (جل جلاله) د نعمتونو ربښتيني مننډويان واوسئ، په هر حالت کې يوازې له هغه څخه مرسته وغواړئ، خپلې غلطی او غفلتونه جبران کړئ ځکه د يوې ګناه دوام په خپله بله ګناه ده؛ د توبې او غلطيو جبران ته پاملرنه نه کول؛ د ګناه ادامه او د نافرمانی سره د زړه تړل د نابودی او سرګردانی کلی ده.

له ټولو بده خو دا ده چې زړه او لاس دې دواړه په ګناه کې ککړ وي او باور هم ولرې چې الله (جل جلاله) ليدونکی او پوه ذات دی.

د ستار الله (جل جلاله) نه غواړم چې مونږ ټول په خپل فضل او مهربانی سره پټ کړي او له ککړتيا څخه مو وساتي (آمين).


**اصلاح ملی را از اینجا بدست آورید**

**کابل:** تايمني، چهار راهی حاجي محمد داد، سرک ۴، دفتر مرکزی جمعيت اصلاح. تيلفون: ۰۷۹۹۳۹۴۰۱۵/۰۲۰۲۲۰۴۳۰۵

**کابل:** کوته سنگی، سرک سیلو، بلاک های شاداب ظفر، انتشارات اصلاح افکار: موبایل: ۰۷۷۸۱۹۱۳۸۲

**کابل:** شهر نو، چهار راهی انصاری، کتاب فروشی رسالت. ۰۲۰۲۲۰۳۳۵۹

**کابل:** انتشارات مستقبل مقابل بلاک های شاداب ظفر، ۰۷۷۸۸۷۰۳۰۵

**کابل:** کمپیوتر فروشی الکاموي جاده نادر پشتون، مارکیت الله نظر منزل ۲ دوکان ۲۳/ . ۰۷۹۹۳۹۰۸۱۹

**کابل:** کابل ده افغانان کتاب فروشی بیهقی

**کابل:** انتشارات بنیاد علمی و فرهنگی مسجد جامع پل خشتی ۰۷۹۹۰۱۱۱۱۱ / ۰۷۵۲۲۲۲۲۲۲

**ننګرهار:** جلال آباد، د محاکمو رياست شاته چهل متره سرک، ښی لاس، ځلورمه کوڅه، لومړی کور د جمعيت اصلاح دفتر (ابو يوسف تعليمی مرکز) تيلفون: ۰۷۰۰۶۳۲۴۸۰

×د شيرين دل پلازې لاندې پوړ، نقيب کتاب پلورنځی. تيلفون: ۰۷۷۲۸۲۸۶۴۹/۰۷۰۰۹۵۶۴۲۳

**کندهار:** شهر نو هرات سرک خوشبخت صالون ته مخامخ سوري مينه د جمعيت اصلاح دفتر تيلفون: ۰۷۰۰۳۰۸۲۷۱ / ۰۷۰۰۶۶۸۹۴۸

**لغمان:** مهترلام ښار، حمزه مارکيټ تيلفون: ۰۷۹۹۴۴۲۹۲۰

**هرات:** سرک بانک خون، جادهٔ مسجد جامع باغچهٔ مهتر، انجمن اخلاق و معرفت ۲۳۵۵۹۰ – ۰۷۰۰۴۳۰۲۳۳ – ۰۷۹۹۲۰۶۱۹۷ – ۰۷۹۹۱۰۹۰۷۳

**بلخ:** تيلفون: ۰۷۰۰۵۴۲۲۱۱ / ۰۷۹۹۶۹۴۲۴۵

**کندز:** شهر کندز، جاده ولایت، کوچه حاجی میری، مؤسسه تحصیلات عالی سلام ۰۷۸۷۷۰۳۷۲۴

**بغلان:** پلخمری، مارکیت اتفاق کتاب و قرطاسیه فروشی رسالت ۰۷۷۷۴۷۶۴۶۹ / ۰۷۰۰۵۸۹۸۵۷

**لوګر:** مرکز، مدينه مارکيت سرک مسجد جامع، کتاب فروشی سادات، سيد عبدالحميد هاشمی، تيلفون: ۰۷۰۰۰۴۴۹۸۱

**لوګر:** محمدآغه، واغجان بازار، پهلوی کلنیک حسین خیل، تیلفون: ۰۷۷۵۴۱۳۸۷۶

**پکتيا:** د ګرديز ښار، مرکزي چوک، د نې نماينده ګی وحيد الله: ۰۷۷۹۲۱۳۸۲۲

**خوست:** افغان ټاور شاته خوست مرکزی طبی لابراتوار دوهم پوړ د جمعيت اصلاح ساحوی دفتر ډاکټر محمد ګلاب: ۰۷۹۹۱۷۴۵۴۶ / ۰۷۷۷۱۷۴۵۴۶

**تخار:** بازارچه کتاب دکان مولوی حبيب الرحمن ۰۷۷۹۶۳۴۱۹۲

**بدخشان فيض آباد:** ۰۷۷۵۲۷۰۵۰۸ / ۰۷۰۷۸۳۱۳۶۴

**زابل:** ۰۷۰۰۳۰۱۹۴۸

**فراه:** جاده مخابرات دست راست مرکز علمی و فرهنگی توحید ۰۷۰۳۲۰۲۰۴۴

**کونړ:** د معارف رياست ته مخامخ د جمعيت اصلاح ساحوي دفتر

**پيښور:** مرکز فرهنگی اسلامی افغانستان/ تيلفون: ۰۹۱۵۸۵۲۷۹۵

قیمت یک شماره ۱۰ افغانی




بجز اصلاح اراده دیگری ندارم سوره هود ۸۸

هفته نامه
اصلاح ملی
اونیزه
داسلام داصیل فهم منبر

Email:eslahmilli@gmail.com
Www.EslahOnline.Net

دلیکوال پلاوي تر نظر لاندې

دامتیاز خاوند:
جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان

مدیر مسئول:
نقیب الله حمید 0774327438

رئیس هیأت تحریر:
عبدالفتاح جواد

آدرس بانکی: جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک
A/c No=1001202080036
(افغانی)

آدرس بانکی: جمعیت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک
A/c No=1001201080036
دالر امریکائی

دیزاینر: محمد مسلم حریر
Mob:0788298571




## سرمقاله

# بازهم به انتظار صلح!

با سفرهیأت بلندرتبه شورای عالی صلح به پاکستان و رهایی چندتن از اسرای طالبان و آمدن اشفاق کیانی به کابل و دیدارش با رئیس جمهورکشورحامد کرزی، موضوع صلح با مخالفان مسلح دولت افغانستان بار دیگر رسانه یی شد و امیدهای را در خاتمه یافتن بحران کشور برانگیخت.

شکی نیست که رفتن هیأت شورای عالی صلح به اسلام آباد دستاوردی داشت و توانست که با متقاعد ساختن جانب پاکستان به رهایی چندتن ازاسرای طالبان، برای آنها روی خوش نشان دهند و زمینه نزدیک شدن به تفاهم را با آنها فراهم گردانند.

لیکن آنچه که مهم و درخور توجه در نایل آمدن به این آرزو است، همانا صداقت طرفین در این مورد است، آنچه که تا هنوز در پرده ابهام قرار دارد. و شرط موفقیت روند صلح نیز وابسته به همین صداقت طرفین است، ولی تا کنون آمادگی روشن و مشخص از طرف مقامات بلند رتبه و ذی صلاح مخالفان مسلح دولت و صداقت حکومت پاکستان در این زمینه وجود ندارد، و مخالفان مسلح دولت پیوسته در رفتن به پای میزمذاکرات برای دست یابی به پدیده صلح، شرط قبلی خود را که خروج نیروهای بیرونی از کشور است را مطرح می سازند، چیزی که تا هنوز حکومت افغانستان در این زمینه برای آنها پیامی داده نتوانسته است.

عدم موفقیت تماس های مباشرشورای عالی صلح با سران با صلاحیت و مقامات کلیدی و بازیگران مهم مخالفان مسلح دولت افغانستان، مهمترین چالش های است که نومیدی را در به سررسید ن پروسه صلح برانگیخته است و تلاش ها در این زمینه را در پرده ابهام قرار داده است و شک و تردید را بیشتر نموده است؛ چون بهترین راه برای تحقق این آرمان، تلاش برای دست یابی به تفاهم مستقیم هردو طرف و نشست مستقیم با سران ذی صلاح مخالفان مسلح دولت است و آماده شدن هردو طرف در گذشت از برخی امتیاز طلبی ها و تحمیل دیدگاه ها و خواست های خود. در غیر آن، این همه تلاش ها سودی را بدنبال نخواهد داشت.

در اخیر این نکته قابل ذکر است که با اعمال زور، بحران کشور حل نمی گردد و یک دهه جنگ نشان داد که نسخه ی جنگ، درمان خوب برای پایان بخشیدن اوضاع ناگوار سیاسی و نظامی کشور نبوده و تنها نسخه درمان، پایین آمدن از بلندای امتیازطلبی ها و خودخواهی ها و روبردن به صلح و غرس نهال همگرایی و همپذیری و تلاش برای وفاق همگانی می باشد.

صلح خواست هر افغان و گمشده هر فرد این مرزوبوم است و همه به انتظار تحقق این ماﻣﻮل بزرگ لحظه شماری می کنند، چون می دانند که ازاین رهگذر، گلیم معضلات سیاسی و نظامی، ناآرامی و کشتار، غم و اندوه ازاین کشور برچیده می شود و امیدوارند که این خواست شان هرچه زودترتحقق پذیرد.

# د امریکا او افغانستان ترمنځ امنيتي تړون

دکتورمصباح الله عبد الباقي

امریکا د افغانستان له حکومت سره د ۲۰۱۴م کال څخه دمخه د امنیتي تړون د لاسلیك کولو لپاره خبرې اترې پيل کړې، د افغانستان له لوري په دې خبرو کې د ګډون کونکي پلاوي مشري په امريکا کې د افغانستان سفير اکليل احمد حکيمي کوي! او د امريکايي پلاوي مشري به د افغانستان او پاکستان لپاره د امريکا د جمهور رئيس خاص استازى جيمز وارلك کوي، دا خبرې په رسمي توګه د روان کال د عقرب د مياشتې په ۲۵مه نيټه په کابل کې پيل شوي دي.

امريکا په هيڅ ځاى کې هم خپله استراتيژي په بشپړه توګه نه ځرګندوي، او دا ددې لپاره چې څوك يې راتلونکو ګامونو ته متوجه نه شي او د هغوى استراتيژي له ناکامۍ سره مخ نه شي، نو افغانستان کې هم په همدې پاليسۍ عمل کوي، ولې هغه خلك چې د غرب د سياسي فلسفې (د ګټې او تاوان فلسفې) څخه اګاه اوخبر ؤ، له لومړۍ ورځې څخه په دې پوهيدل چې د دوى اصل اهداف څه دى، او دوى په کومو ګامونو هغه ته رسيدل غواړي، له پيل څخه دلته په استراتيژيك لحاظ د امريکا دا لاندې موخې او اهداف ؤ او لاتر اوسه هم دي:

لومړى: دا ټوله سيمه، اسلامي نړۍ او په ځانګړې توګه افغانستان، پاکستان او د پاکستان او افغانستان ترمنځ پرتې قبايلي سيمې په داسې حالت کې ساتل چې بيا له دې ځايه د امريکا او اروپا، او د هغوى د دوستانو داخلي امنيت او په بهر کې د هغوى حياتي ګټو ته خطر متوجه نه شي، لکه په ۲۰۰۱م کال کې چې امريکا او له هغې وروسته کلونو کې چې نورو اروپايي هيوادونو ته متوجه شو، ددې هدف د لاس ته راوړلو لپاره دوى په څلور اړخيزې پاليسۍ کار پيل کړ، لومړى: عسکري او د قوت د استعمال پاليسي، دوهم: اقتصادي او د مالي وضعيت د را ښه کولو پاليسي څکه د دوى په نظر د امريکا پر ضد هغه خلك استعماليږي چې په اقتصادي لحاظ ناتوانه وي بناء دلته بايد اقتصادي پرمختګ راشي ترڅو د امريکا مخالف جهتونو لخوا د عسکر ګيرۍ چانسونه کم شي، دريم: فکري او ثقافي بدلون چې ددې لپاره دوى د ميډيا، تعليمي ميدان او پراخه ثقافتي ميدان کې ډير لوى پرګرام په لاره اچولى دى، او څلورم: سياسي ميدان په دې ميدان کې دوى غواړي چې دلته هميش لپاره داسې حکومتونه پاتې شي چې د دوى ګټې خوندي وساتي، دا د دوى لومړى هدف وه او دې ټولې استراتيژۍ ته دوى د تروريزم پر ضد د جنګ ( War on terrorism) نوم ورکړ.

دويم هدف: د امريکايانو دې سيمې ته د راتګ دويم هدف دا وه چې دلته د طبيعي دولت (ګاز، نفت او معادنو) کومې زيرمې وجود لري هغه د خپل تصرف لاندې وساتي، څکه دا د دوى د اقتصاد لپاره هم مهمې دي او همدا راز ددې لپاره هم مهمې دي چې دوى په نړۍ خپل تصرف قائم وساتي، او د نړۍ د يوائيني زبر ځواك په حيث خپل حيثيت ته ادامه ورکړي، همدا راز د دوى لوى کمپنۍ هم په دې زيرمو کې زياته دلچسپي لري، ددې کار لپاره دلته د دوى سياسي، عسکري او اقتصادي وجود هم اړين وه او دى.



دريم هدف: د امريکا دريم هدف دا وه او لاتر اوسه پورې همدا دې چې هغه هيوادونه چې اتومي وسله لري او يا يې د جوړولو په درشل کې دي هغه له دې ځايه کنټرول کړي، په ځانګړې توګه هغه هيوادونه چې د امريکا د سياسي اثر او رسوخ څخه بيرون دي، او يا هم سره له دې چې حکومتونه يې د امريکا د رسوخ لاندې دي مګر اسلامي هيوادونه دي او ددې احتمال شته چې حکومت په کې داسې چا ته په لاس ورشي چې په فکري لحاظ د امريکا سره مخالفت لري، ددې ډول هيوادونو کنټرول هم له افغانستان څخه په ډيره ښه توګه سرته رسيدلى شي او ځانګړې توګه د استخباراتي ډلو او ګروپونو له لارې، څکه افغانستان په داسې ساحه کې پروت دې چې ډير داسې هيوادونه شا او خوا ته پراته دي چې اتومي وسله لري او يا

يې د جوړولو په درشل کې دي لکه چين، هند، پاکستان، ايران او داسې نور، او امريکا دا هيوادونه ځکه کنټرول کول غواړي چې يا خو دا هيوادونه د امريکا په مدار وڅرخيږي او يا هم د اتومي وسلې څخه محروم شي او دا ځکه چې د همدې وسلې له امله دا هيوادونه د امريکا نړيوال حيثيت چلنج کولی شي او د همدې په بنسټ د امريکا غوښتنو ته د نه ځواب ورکولی شي.

دا افغانستان ته د امريکا د راتللو استراتيژيك اهداف ؤ، دا اهداف لاتر اوسه نه دي پوره شوي، د همدې اهدافو د لاس ته راوړلو لپاره دلته امريکا ډير لوی مصارف کړي دي، امريکا د همدې استراتيژيکو اهدافو او موخو د لاس ته راوړلو لپاره دلته پاتې کيدل غواړي، هغوی سره اصلا د افغانستان ګټې مطرح نه دي، چونکه د محاربوي تيارسې په حالت کې د يونيم لك شا او خوا پوځ په ساتلو کې د امريکا اقتصادي مصارف نور هم لوړيدل، له دې امله اوس امريکا غواړي چې د خپل شتون شکل بدل کړي چې په نتيجه کې يې خپل اقتصادي مصارف کم کړي، او په عين حال کې د خپلو پوځونو تلفات هم ټيټې کچې ته را ورسوي، او د کوم وخت نه يې چې په ځينې سيمو کې امنيتي مسؤليتونه افغان ځواکونو ته ليږدولي دي، هلته د دوی مالي مصارف او هم د دوی د عسکرو تلفات راکم شوي دي، د همدې شکل د بدلولو لپاره دا خبرې اترې رواني دي او په دې امنيتي تړون کې به دا بحث کيږي چې د امريکايي عسکرو څومره شميره بايد دلته پاتې شي؟ او د دوی سره به کوم ډول تسليحات وي؟ دوی به دلته ته څه صلاحيتونه لري؟ ايا دوی به کوم مسؤليت هم لري او که نه؟ په طبيعي توګه دا ټول د امريکا ګټې دي او هغوی د خپلو ګټو ساتلو لپاره هلې ځلې کو.

خو اوس سوال دا پيدا کيږي چې په دې کې د افغانستان هم څه ګټه شته؟ افغانستان ولې دې تړون ته خوشحاله دی؟ دوی دا تړون ولی لاسليك کول غواړي؟ د افغانستان د اوسني حکومت هم په ډيره څرګنده توګه په دې پوه دي چې دا تړون امريکايان د خپلو ګټو د ساتلو لپاره لاسليك کوي، خو په دې نظام کې شامل يو شمير چارواکي خو دې تړون ته ددې لپاره خوشحاله دي چې دهغوي هغه شتمنيو ته تحفظ ور په برخه کيږي چې په تيرو يوولس کالو کې يې جمع کړي او غصب کړي دي، او يو شمير نور د خپلو روانو تجارتونو په فکر کې دي او داسې تړونونه د خپلو شخصي مادي ګټو لپاره ګټور بولي، مګر که دا کسان پريږدو او يوائې د هغه چا خبره وکړو چې هغوي معقول خلك دي او په ملي سطح فکر کوي او د افغانستان راتلونکی ورته اهميت لري، او ددې اوسني نظام برخه دي او يا هم يې برخه نه دي له دوی څخه د يو شمير خلکو تصور دا دی چې دا تړون د افغانستان په استقرار کې معاون ثابتيدلی شي، ځکه چې د امريکا محدود پوځی موجوديت به د کوم ناڅاپي تحول څخه مخنيوی وکړي، او افغانستان به د استقرار په لور يوسي، جنګ به ختم کړي، ددې ترڅنګ موږ د افغانستان د ابادولو لپاره نړيوالو مرستو ته اړتيا لرو او دا مرستې د همداسې تړونونو له لارې تر لاسه کيدلی شي.

که موږ د رسنيو له تاثير څخه لږ ليرې په آرامه فضاء کې په دې فکر وکړو چې ايا دا ادعاګانې څومره د حقيقت سره نږدې دي او څومره يوائې ارزوګانی دي چې د واقعيت سره هيڅ تړاو نه لري، دا درسته خبره ده چې کيدلی شي چې ددې پوځونو موجوديت د ناڅاپي تحول مخنيوي وکړي شي مګر دا زموږ د مشکل چې هغه په افغانستان کې د جنګ خاتمه ده هيڅکله هم مفيد نشي واقع کيدلی، ځکه د جنګ خاتمه د وسلې او د زور له لارې ممکن نه ده، که دا کار ممکن وی نو په تيرو يوولسو کالو کې به سرته رسيدلی وی، ځکه ناټو او امريکا خپل ټول زور و ازمايلو خو نتيجه يې ور نکړه، دا څرنګه ممکنه ده چې د يونيم لك پوځونو د استعمال په نتيجه کې خو جنګ خاتمه پيدا نه کړي او د يو محدود شمير پوځونو چې هغه به هم په خپلو هډو کې محصور وي په موجوديت کې دې دا کار سرته ورسيږي؟

له بله پلوه د امريکا دايمي پوځي هډې به د مسلح مقاومت لپاره ددې فرصت مهيا کوي چې د ملت د ځوانانو څخه عسکر ګيري وکړي، ځکه دې مسألې اوس ديني بڼه غوره کړې ده.

نو کله چې جنګ ختم نه شي نو افغانستان ته استقرار نشي راتللی، او کله چې استقرار نه وي نړيواله ټولنه که هر څومره مرستې وکړي هغه به ټولې په هغه څير ضائع شي لکه په تيرو يوولسو کالو کې چې څرنګه ضائع شوی!

له بلې خوا د امريکايي پوځونو موجوديت د افغانستان لپاره نور ډير زيات جانبي عوارض او ضرورونه هم لري، چې په ډيره مختصره توګه ورته لاندی اشاره کول ضروری ګڼم:

١. سياسي وابستګي: په راتلونکی چې هر څوك په افغانستان حکومت کوي هغه به په خپلو سياسي فيصلو او پريکړو کې ازاد نه وي بلکې هميشه به په خپلو سياسي فيصلو، د نورو هيوادونو سره په اړيکو کې د دوی د ګټو رعايت په ځان لازم ګڼي او په دې توګه به افغانستان خپله سياسي ازادي له لاسه ورکړي.

٢. اقتصادي مشکل: په اقتصادی لحاظ به هم په افغانستان کې هيڅ راتلونکی حکومت خپله ازاده پاليسي نشي درلودای، ځکه چې ددوی د موجوديت له امله به دې ته اړ وي چې داسې يوه پاليسي غوره کړي چې په نړيواله سطحه د امريکا د اقتصادي حريفانو پر ضد وي، ځکه دا د دوی لپاره حياتي او استراتيژيکه مسأله ده، د بيلګې په توګه د افغانستان هيڅ راتلونکی حکومت به د چين سره داسې تعامل نه شي کولی چې د هغې نه امريکايانو ته اقتصادي ستونزې راولاړيږي ولو که په دې که د افغانستان اقتصادي مرګ هم وي، همدا اوس د معادنو د استخراج په باب په چينايانو باندی ساحه د امريکايانو له پلوه تنګيږي او څه داسې هيوادونو ته ترجيح ورکول کيږي چې امريکايان يې په سيميزه سطحه د چين د مقابلې لپاره راپورته کول غواړي، مګر د افغانستان حکومت په دې اړه هيڅ هم نشي کولی، له دې امله د دوی موجوديت د افغانستان لپاره مشکل دې د مشکل حل نه دی.

۳. ثقافي او ديني مشکل: د ځلوېښت پنځوس زره داسې خلکو په يوه ټولنه کې اوسېدل چې د هغوي کلتور، دين، او اجتماعي اخلاقيات د هغه ټولنې سره په ټکر کې وي ډېر لوی مشکلات را پيدا کولی شي، د امريکا د داسې پوځي هډو موجوديت په داسې ټولنو کې هم د مشکلاتو د راولاړيدلو لامل ګرځي چې د دوی سره په دين، کلتور او اخلاقياتو کې يو شانته دي لکه جاپان، المان او داسې نور، نو په افغانستان کې به ددې مشکلاتو کچه څومره وي؟ ددې تصور هم د انسان غوښې ږيږوي.

۴. امنيتي ستونزې: دلته پاتې کېدونکو پوځي قطعاتو کې به حتما د امريکايي استخباراتي اداری (CIA) مضبوط ګروپونه هم وي، دا ګروپونه به په سيمه کې د امريکايي ګټو د ساتلو لپاره د افغانستان څخه د مرکز په حيث کار اخلي لکه پخوا يې چې د ايران او نورو هيوادونو څخه اخيسته، دا به په طبيعي توګه د افغانستان نږدې او ليرې ګاونډيان دې ته هڅوي چې په افغانستان کې امنيت ګډوډ کړي تر څو امريکايان دلته استقرار پيدا نه کړی شي.

نو کله چې داسې يو ترون چې شرايط يې هر څه وي چې د امريکايانو لپاره د هغوي د ټولو ګټو د لاس ته راوړلو لامل ګرځي او د افغانستان هيڅ يو بنسټيز هدف هم ترې نه تر لاسه کيږي بلکې ددې ترڅنګ ډېر لوی مشکلات او ستونزې هم ترې راولاړيږي ايا دا به د عقل خبره وي چې داسې يو ترون لاسليك کړی شي؟ دا قضاوت درنو لوستونکو ته پريږدم.

اوس چې کوم لوی سوال راپيدا کيږي هغه دا دې چې د کمزوري په دې حالت کې چې امريکايان نه وي افغانستان به د ګاونډيانو د مداخلاتو څخه څنګه محفوظ پاتې شي؟ او دويمه دا چې د دې ګاونډيانو د مداخلاتو او د خپل منځی شخړو په نتيجه کې د رامنځته شوو حالاتو په نتيجه په فوري توګه د خپل منځی جنګونو احتمالات دومره زيات دې چې انسان د ويرې او ترس سره مخ کوي له دې څخه به څنګه ځان ژغورو؟ ايا ددې دواړو مشکلاتو کوم حل شته؟

بلی ددې دواړو مشکلاتو حل شته، کيدلی شي لږ به مشکل وي، د زغم او يو بل ته د تيريدو متقاضی به هم وي، لږ طويل او صبر ازما به هم وي مګر حل يې شته دی، او دا حل په لاندی څو نقطو کې نغښتی دی:

لومړی: که موږ هغه اسباب ولټوو چې افغانی ډلی ولې د ګاونډيو په لومو کې نښلي، نو يواځينی اسباب چې مخ ته راځی هغه دا دی:

لومړی: يو شمير دا تصور لری چې هيواد يې اشغال دی، او يا ددوی په اسلامی خاوره تجاوز شوی دې او ددې اشغال او تجاوز د ختمولو لپاره که شيطان هم وی د هغې څخه بايد مرسته واخيستل شي.

دويم: کله چې کومه ډله ددې احساس کوي چې هغه مظلومه ده او په زور او تزوير سره د خپل حق څخه محروميږی، هغه د هغې په زعم د خپل حق د تر لاسه کولو لپاره بايد د هر چا څخه چې وي مرسته ترلاسه کړي.

که موږ دا دوه لاملونه له منځه يوسو، خارجي پوځونه د افغانستان څخه بيرون کړي شي دا لومړی لامل به له منځه ولاړ شي، او د افغانانو ترمنځ يو حقيقی تفاهم پيل شي چې هر څوك دلته د عزت او احترام احساس وکړي خپل ځان معزز او محترم محسوس کړي، هيڅ چا ته د دونيت په سترګه ونه کتل شي، او د يو ملي سند په حيث په څه مشترکاتو باندی سره ټول افغانان هر څوك چې دي توافق وکړي، هر ډول تهمتونه پريښودل شي، هيڅ څوك د مظلوميت احساس ونه کړي، په ټولو خلکو کې وطنيت احساس راژوندی کړای شي، زه يقين لرم چې هيڅ يوه افغانه ډله به د ګاونډيو د لاس اله نه شي، او کله چې ګاونډيان او بهرنی هيوادونه افغانی جهات د اله کار په حيث د ځان سره ونه لري هغوي دلته په هيڅ شکل هم مداخله نشي کولی، مګر دا کار للهيت، اخلاص، د خپلو څه شخصي، تنظيمی، سمتي، او ... ګټو څخه د تيريدو غوښتنه کوي که موږ دې ته تيار شوو نو دا کار کيدونکی دی، خلاصه خبره دا چې بايد يو واقعی بين الافغانی تفاهم پيل شي.

دويمه نقطه: دا ده چې ددې بين الافغانی تفاهم تر شا د يو ملي اجتماعي خوځښت په نتيجه کې (چې بايد د ملت مخلص بچې او داسې ځوان نسل يې قيادت وکړي چې د پخوانيو سياسی او تنظيمی او سمتی ځنځيرونو څخه پښی ازادی وی) د ملت پرګنې ودريږي تر څو هغه ډلې او جهتونه چې د خپله انده دا تفاهم ونه مني هغه د ملت څخه تجريد کړی شي، او ټول ملت د هغې په خلاف اواز اوچت کړي، يعني هغه تصور بايد نور مات کړي شی چې هر څه پيسی او وسلی کوي بلکې دا تصور بايد راژوندی کړی شی چې د ملت پرګنی او سياسی او اجتماعي فشار هغه څه کولی شی چې نه يې پيسی کولی شی او نه يې وسلی، طبعی خبره ده دا هم قربانيو ته اړتيا لری او هم وخت ورکولو ته او هم ستونزمن کار دی، خو ممکن دی، او په ډيرو هيوادونو کې تر سره شوی هم دی.

دريمه نقطه: په دې دوران کې بايد يو څه ملي مؤسسات چې هغه واقعی ملي مؤسسات وګرځی تقويه کړي شی، اردو، پوليس، امنيت، قضاء او داسې نور، په دې که دوه ډوله اقداماتو ته اړتيا ده، لومړي دا چې دا اداری د فساد څخه پاکی کړی شی، تقويه کړی شی، او دوی خپل ملي هويت تر لاسه کړي يواځی د امريکايانو د ساتندويه کمپنيو کار تر سره نه کړي، بلکې واقعی ملي هويت کسب کړي، په روانه جګړه کې په داسې ډول د ښکيل کيدو څخه ځان وژغوري چې په يو پړاو کې پرې ټولې ډلې اتفاق وکړي شي، پروفيشنليزم باندی زيات توجه وکړی شي، کله چې دا اداری په ملي روحيه ورزل شي بيا د بهرنيانو د وتلو نه وروسته د مشکلاتو سره د مقابلی امکان را پيدا کيږی.

****

# آینده پروسه صلح در آئینه تلاش های شورای صلح وسیمینارهای خارجی !

احمد ضیاء رحیمزی

هرچند از سفر رسمی هیأت شورای عالی صلح به پاکستان و اعلام برخی توافقاتی که در اسلام آباد طی مذاکرات با سران ملکی ونظامی آن کشور بدست آمد, بیش از یک هفته می گذرد ولی تا هنوز هم یک قول ثابت و واحد درمورد تعداد واسامی طالبان رها شده از زندان های پاکستان وجود ندارد وهنوزهم اقلاً خیلی ها نمی دانند که آیا پاکستان طبق وعده ای که با صلاح الدین ربانی رئیس شورای عالی صلح وهیأت همراهش داده بود, واقعاً این افراد را از زندان رها ساخته است یا خیر؟

از جانب دیگر این سؤال نیز درحلقات رسانه یی وسیاسی کشور مطرح است که حتی اگر بپذیریم که پاکستان طبق وعده قبلی خود این افراد را رها سازد, آیا این عده از سران طالبان که مدتی اقلاً بیشتر از یک سال را در زندان های پاکستان سپری نموده اند ونه تنها از جانب اداره استخبارات نظامی آن کشور یعنی آی ایس آی بلکه از جانب افراد وابسته به استخبارات امریکاوسی آی ای هم مورد بازجویی وتحقیق قرار گرفته اند, تا چه حد می توانند برای طالبان مسلح قابل اعتماد باشند, تا بتوانند در راستای مذاکرات صلح بین مقامات افغان وطالبان مسلح میانجیگری نمایند؟

آنچه از دیدظاهری در مورد سفر سه روزه هیأت شورای عالی صلح که بعداً به چهار روز امتداد یافت مشاهده می شود این است که , هیأت افغانی با استقبال خوب مقامات پاکستانی روبرو شد و دیدارهای خوبی هم با مقامات ملکی ونظامی اسلام آباد داشت , اما اینکه این مذاکرات وملاقات ها و وعده های که پاکستان به این هیأت داده است می تواند در راستای استقرار صلح وامنیت درکشور کار آمد باشد , یا خیر موضوع دیگریست که باید اندکی دقیقتر وعمیقتر به آن نگریست.

تحلیلگران وکارشناسان مسایل افغانستان وآنانیکه شناخت کافی از طرز کار کرد ونحوه برخورد مخالفین مسلح دارند, به این باورند که افراد واشخاص مربوط به تحریک طالبان وسایر گروه های مخالفین مسلح بدست حکومت افغانستان یا پاکستان می افتند, دوباره نمی توانند جایگاه سابقه خود را دراین صفوف بدست بیاورند.




بنابر این هیچ گونه اطمینانی وجود ندارد که افراد رها شده که همه افراد طیف متوسط در تحریک طالبان هستند, بتوانند دراین راستا گام های عملی ومؤثری بردارند, وحتی اگر افرادی چون ملاعبدالغنی برادر و ملا معتصم آغا که یکی روزگاری معاون رهبر تحریک ودومی هم مسؤول امور مالی آن بود, اگر بخواهند پس از تحولاتی که در مورد ایشان به وقوع پیوست نمی توانند دراین راستا نقش مؤثری ایفا نمایند , چون بعد از دستگیری این افراد توسط حکومت های افغانستان وپاکستان آنها از مقام ومنزلت قبلی خود نزد رهبری این تحریک بر خوردار بودند, را از دست می دهند ونمی توان قبول کرد اعتمادی را که رهبری طالبان برآنها داشت, دوباره بدست بیاورند.

از جانب دیگر این پرسش نیز به جای خود باقی است که چرا پاکستان به این خواست هیأت شورای عالی صلح که باید ملاعبدالغنی برادر معاون سابق تحریک طالبان نیز درجمع افراد رها شده قرار داشته باشد, موافقت نکردند؟

برخی از اشخاصی که شناخت کافی از سیاست های پاکستان ومواقف طالبان مسلح در مورد پروسه صلح دارند,به این نظرهم هستند که موضوع رهایی چند زندانی طالب , تصمیمی بود که مقامات پاکستان قبل از سفر هیأت شورای عالی صلح به آن کشور اتخاذ نموده بودند ولی خواستند با اعلان این تصمیم در زمان سفر این هیأت , بر آنها نیز احسان بگذارند وهیأت مذکور نیز که با وجود سپری شدن ۲۵ ساعت افزون تر از موعد مقرر شان در خاک پاکستان , به نتیجه خاصی دست نیافته بودند,با دلخوشی از رهایی این افراد, آنرا دست آورد عظیمی برای خود پنداشتند وبه حیث یک موفقیت خود به خور رسانه ها دادند.

هارون رشید نویسنده و ژونالست پاکستانی در سایت اردوی بی بی سی ضمن مقاله ای که در مورد سفر صلاح الدین ربانی وهمراهانش به اسلام آباد نوشته است, به وضاحت اظهار نموده که هیأت افغانی به دلیل برآورده نشدن اهداف سفرش به پاکستان , برای ۲۵ ساعت بیشتر در یک هوتل پنج ستاره اسلام آباد منتظر ماندند تا اینکه پس از تبادله گفتگو ها وتماس ها بین این اعضای این هیأت ومقامات پاکستانی بالاخره اعلامیه مشترک وزارت خارجه پاکستان وهیأت شورای عالی صلح به رسانه ها صادر گردید وبه این ترتیب سفر این هیأت بدون کدام دست آورد خاصی خاتمه یافت.

این نویسنده پاکستانی درمقاله مذکور همچنان می گوید که هیأت شورای صلح افغانستان از مقامات پاکستانی خواهان شریک ساختن مقام های رهبری طالبان درمذاکرات مشترک صلح بین افغانستان وپاکستان بودند که به قول نویسنده بنا بردلایل مختلفی مقامات پاکستان به این خواست هیأت شورای صلح پاسخ مثبت ندادند.

هر چند نویسنده پاکستانی با در نظر داشت دیدگاه خود این موضوع را مطرح ساخته اما رسانه های افغانی وحتی رسانه های خارجی قبل از سفر این هیأت به اسلام آباد بار ها این نکته را مطرح ساخته بودند که یکی از خواست های شورای صلح همکاری پاکستان در راستای کشانیدن رهبران طالبان افغانستان به پای میز مذاکره است.

به این ترتیب مشاهده می شود که سفر هیأت شورای صلح به اسلام آباد چندان دست آورد خاصی نداشته است وآنچه اعضای این هیأت از آن به حیث مؤفقیت خویش به رخ رسانه ها می کشند, آنچنان نیست که آنها ادعا می کنند.

از جانب دیگر وچند روز پس از آنکه هیأت شورای عالی صلح از سفر اسلام آباد به کابل برگشت, برخی رسانه ها از تدویر سیمیناری در رابطه با مذاکرات مقامات امریکایی وطالبان مسلح در دوحه پایتخت قطر خبر دادند وعده ای از تحلیلگران وبرخی رسانه ها چنان وانمود کردند که گویا تدویر این سیمینار متعاقب سفر هیأت شورای صلح به اسلام آباد نشاندهنده قدم دوم در راستای مذاکرات صلح در افغانستان است.

درحالیکه به اساس گزارش های دقیق وبه قول اشتراک کننده گان این سیمینار یک روزه, این سیمینار تنها یک برنامه علمی برای بررسی راه های علمی وعملی مذاکرات صلح بین مقامات امریکایی وطالبان مسلح بود که ازجانب مرکز "منتدی العلاقات الدولیة والعربیة" انجمن روابط جهانی وعربی که مرکز آن در دوحه قرار دارد ترتیب شده بود وهیچ نماینده طالبان مسلح , حتی از دفتر این گروه در قطر نیز در آن اشتراک نداشت.

هرچند بدون شک تدویر این گونه سیمینار ها به خصوص به شکل این سیمینار که تحت نام " مذاکرات بین امریکا وطالبان به کدام سو؟" تدویر یافته بود, می تواند در جستجوی راه های درست واصولی مذاکرات صلح بین جوانب مختلف درگیر در جنگ افغانستان کمک نماید, ولی دو دستگی مقامات حکومت کابل وواشنگتن در مورد مذاکرات صلح , زمزمه های تکراری شرط های بیجا وبی مورد برمخالفین مسلح درمورد پیوستن آنان به پروسه صلح نشان می دهد که ارگانها ومقاماتی بلند رتبه ای در دولت کنونی کابل وجود دارند که بیشتر به ادامه جنگ وحضور کمی وکیفی بیگانگان فکر می کنند, تا به استقرار صلح وثبات در کشور.

حال تا هنگامی که حکمروایان کابل وحامیان خارجی آنها راه های حقیقی استقرار صلح وثبات درکشور را جستجو ننمایند وهمه جناحهای درگیر در جنگ افغانستان بدون پافشاری بر مواقف ونظریات خود یا هم تقاضای امتیازات برای خود , به شکل واقعی برای افغانستانی پس از ۲۰۱۴ نیاندیشند, بدون شک ترس وهراسی که اکنون در دل مردم کشور جا گرفته مبنی بر اینکه با خروج نیروهای امریکایی وسپرده شدن مسؤولیت های امنیتی کشور به نیروهای ناقص التجربه وناقص الاسلحه افغان, بحران عظیمی دامنگیر کشور ومردم ما خواهد شد که آنگاه به عوض مداوای درد های کنونی ملت درد دیده وجنگ زده افغان, درد ها وزخم های بیشتری نیز نصیب آن خواهد شد.

# غــــزه؛

## بشري ناورين او دوه ګوني سياسي او رسنيز چلندونه

ليکنه: ذاکر جلالي

يوه اونۍ د غزې په تړانګه کې پر ولسي سيمو د اسراييلي ترهګر رژيم بمونه وورېدل. د دغو کرښو تر ليکلو د شهيدانو شمېر تر (۱۴۵) او د ټپيانو شمېر تر (۱۱۰۰) تنو ورسېد. دا يوازې بشري تلفات دي؛ له دغو تلفاتو د اقتصادي زيانونو کچه ښه معلومېدای شي، چې په راتلونکي کې د حماس د ولسي حکومت پر اوږو بار پېټی دی. په روان کال کې دا د مسلمانانو د بې رحمانه وژنو دويمه پېښه ده (له افغانستان پرته) چې په نړۍ کې د بشري حقونو په نامه ډلو او نړيوالو رسنيو يې کله چوپه خوله ننداره کړې او کله يې بيا پر ټپونو مالګينې پټۍ لګولي دي. لومړۍ پېښه په برما کې د مسلمانانو ډله ييزه وژنه ده، چې لا يې هم د وژلو لړۍ روانه ده.

دغو دواړو پېښو ښه ترا وښوده، چې د يوويشتمې پېړۍ انسان هم په ظلم او سخت زړي توب کې تر لرغونو انسانانو کم نه دی. که د روانو پېښو په باب دريځ نيونه کې د رسنيو کردار ته د سليم عقل څښتن انسان پام وکړي، د يو بام او دوه هوا د متل عملي بڼه به ووينې. تېره مياشت د پاکستان په سوات کې د ملالې په نامه د ښوونځي پر يوې نجلۍ بريد وشو، چې په پايله کې نجلۍ ټپي شوه. له دې پېښې سره سم د ملالې نوم د ګردو سيمه ييزو او نړيوالو رسنيو سر ټکی وګرځېد. له فيسبوکه نيولې بيا تر چاپي رسنيو، د ملالې انځور د ټولو «ښکلا» شوه. بارك اوباما، مېرمن کلنټن، بانکي مون، اصف زرداري، حامد کرزي او ګڼو نورو پرې خواشيني وښوده. د افغانستان د ښوونې او روزنې وزير له ښوونځيو وغوښتل، چې ملالې ته د روغتيا دعا وکړي! د دې پېښې په باب د رسنيو او سياستوالو دريځونو د ملالې د قضيې په اړه پوښتنې وپارولې. په تېره د افغان چارواکو دريځ د حيرانتيا وړ و. که دا چارواکي د داسې يوه سوله ييز هېواد مسوولين وای، چې هلته بشر وژنه ستر جرم ګڼل کېدای؛ بيا به دا دريځ معقول برېښېده. څرګنده ده، چې ملاله، رسنيو «ملاله يوسفزۍ» کړه.

د دې هر څه نا جوت دي؛ کوچنۍ نجلۍ او کالم و يادښت ليکنه، د زده کړې لپاره مبارزه...دا هر څه بلا پوښتنې پنځوي. دا ښايي ومنو، چې رسنۍ له انسانه ځناور، له ځناوره انسان؛ له مظلومه ظالم او له ظالمه مظلوم جوړوي. ملاله هم د همدې «رسنيز شخصيت» پوروړې ده.

په غزه کې تر اوسه **۱۴۵**تنه شهيدان دي، چې په دغو تلفاتو کې د ښځو او ماشومانو شمېر هم لږ نه دی... په دغو معصومو ماشومانو کې به څومره د ښوونځيو زده کوونکي وي؟ د دوی استعدادونه به تر ملالې کم وي؟! د غزې څومره علمي او فرهنګي شخصيتونه به شهيدان شوي وي؟!! له دو ټولو سره سره د رسنيو غوږونه کاڼه او سترګې ړندې دي. دوی ګرد د ملالې غم نيولي دي. هلته نن بې هوښه ده، نن يې خبرې وکړې، نن يې خواړه وخوړل، نن يې دا وکړل.. ها يې وکړل.. دا يې ملاله مړه! څه به وشي؟! په داسې دنيا کې چې هلته د ملکي ځايونو بمبارد تهذيب وي، ښايي د ملالې وژنه عادي وګڼل شي!

د اشنا او ازدۍ امريکايي راډيوګانې چې کله د غزې په باب راپور ورکوي، د حماس د اسلامي غورځنګ د نامه له يادولو سره د «افراطي» وروستاړی هم ورزياتوي! څومره بې عدالتي ده، د دغو رسنيو افغان خبريالان چې کله له حماس سره د «افراطي» کلمه ورياتوي، د دوی وجدان به ترې نه پوښتي، چې د ازادۍ لپاره مبارزه هم «افراطيت» دی؟! دا کوم قضاوت دی؟! دا قضاوت په کومو معيارونو ولاړ دی، چې که څوك د خپل هېواد د ازادۍ لپاره مبارزه کوي، افراطي دی؟! که د دې خبريال ضمير لږ هم ويښ وي، ښايي له ځانه وپوښتي، چې څه وايي. د دې خبريالې په دې دردوونکي قضاوت خو د ده هغه تر ټولو نالوستي اورېدونکی هم نه غولېږي.

تېره ورځ د «ښځينې نړيوال سازمان» پر بحرين نيوه وکړه، چې پر بشري حقونو ملنډې وهي! دا څومره د خندا وړ نيوکه ده. تر بحرين لږ وراخوا، غزه سره تبۍ ګرځېدلې او کله چې د دې سازمان دا «نيوکه» رسنۍ خپروي، غزه کې په همدې شېبه د خپلواکۍ غوښتنې په جرم يو انسان وژل کېږي؛ ولې پر اسراييلي ترهګر رژيم نيوکه نه کېږي، چې د بشر د حقونو د نقض په سيالۍ کې تر هر چا مخکښ دی! مېرمن کلنټن اسراييلو ته په خپل سفر کې وويل:«ما تاسو [اسراييلو ته] د ولسمشر اوباما يو څرګند پيغام راوړی او هغه دا چې د اسراييلو له ځانه د دفاع له حق څخه قوي او نه بدلېدونکی ملاتړ کوو». نړۍ څومره ظالمه ده، دا څومره دوګوني چلندونه دي، چې د داسې هېواد له خوا خپلېږي، چې تل د بشر د حقونو نغارې ډنګوي! تر اوسه د حماس په راکټي بريدونو کې له پنځو ډېر اسراييليان نه دي وژل شوي، کلنټن بيا د اسرييلو د «له ځانه د دفاع» حق څخه ملاتړ کوي. بشري حقونه او اخلاقي معيارونه چېرته دي؟!!

د کلنټن پر دې دريځ امريکايي اخلاق او بشر دوستي ښه څرګند کړل. افغان حکومت له داسې هېواد سره د امنيتي تړون د لاسليکولو زمينه برابروي، چې سياسي-اخلاقي معيارونه يې دومره ټيټ او پرېوتي دي. امريکا يو مهال په نړۍ کې د اخلاقو او بشر دوستۍ بېلګه ګڼل کېده؛ همغه مهال شهيد سيد قطب د دې خلکو حيوانيت درك کړی و. نړۍ د سيد قطب له شهادته کابو نيمه پېړۍ وروسته د هغه ستر شخصيت د پريکړې پر وړاندې د تعظيم سر ټيټوي.

نن ډېر شمېر رسنۍ له داسې يوه هېواده خړوبېږي. له دغسې رسنيو تر دې ښه تمه لرل ښايي له عقله لرې فيصله وي. يوازې پر دې خبرې بايد پوه شو، چې زموږ د ټولنې ډېری رسنۍ له همدې لوري تمويلېږي، دوی طبعا له خپلې طبعې سره سم معلومات او پېښې خپروي، چې په دې کار سره يې د ډېری وطنوالو اذهان په خپله ګټه ګرځولي دي. زموږ ولس بله لار نه لري، کله چې له همدغو رسنيو استفاده کوو، ښايي په خلاصو سترګو او ويښ ضمير يې هر خبر تحليل کړو.

# گلبرگهای ادبی

## د مور او پلار سره داسې چلند وکړئ

(لومړۍ برخه)

مسلمانه وروره!

که غواړې په خپل ژوند کې نیکمرغه او په خپلو کارونو کې بریالی اوسې، په دُنیا او اخرت کې سرخرویه، او د قیامت په ورځ د الله له عذاب څخه وژغورل شې، دا لاندې لارښوونې په پام کې ونیسه:

-۱د گناه له امر پرته د مور او پلار هره خبره ومنه.

-۲له هغوی سره له مهربانۍ او ادب ډکې خبرې وکړه.

-۳کله چې در باندې راشي، ور ته ودرېږه.

-۴سهار چې له کوره وځې، او ماښام چې بیرته راځې لاسونه یې ښکل کړه.

-۵د هغوی د حیثیت، شرف او مال ساتنه وکړه.

-۶تل یې عزت وکړه او څه چې غواړي ور یې کړه.

-۷په کارونو کې دې ور سره سلا مشوره وکړه.

-۸هر وخت دُعا ور ته کوه او له خدایه بخښنه ور ته غواړه.

-۹که میلمه ور سره وي له دروازې سره نږدې کښېنه او د هغوی سترگو ته گوره ښایي هغوی در ته کوم پټ امر وکړي.

- ۱۰ هغه کار چې دوی پرې خوښېږي، پرته له دې چې دوی یې در ته ووایي، سر ته ورسوه. (ژباړه: ډاکټر غنچه گل ارمان)

## کلمه ها که باید یاد بگیرید!

موقرترین کلمه "احترام"است... برایش ارزش قایل شو.

آرام ترین کلمه "آرامش"است... به آن برس.

عاقلانه ترین کلمه "احتیاط"است... حواست را جمع کن.

دست و پاگیرترین کلمه "محدودیت"است... اجازه نده مانع پیشرفتت بشود.

سخت ترین کلمه "غیرممکن"است... وجود ندارد.

مخرب ترین کلمه "شتابزدگی"است...مواظب پلهای پشت سرت باش.

تاریک ترین کلمه "نادانی"است...آن را با نور علم روشن کن.

## د دعوت لاره

احمدشاه حقوقي

العین – دعربو متحده امارات

لاره د دعوت کې یې خورا زحمت گاللی دی
ځکه یې په مینه کې ما هر تهمت منلی دی
یو لك او څلرویشت زره گران پیغمبران لرو
ښه په افتخار مې د حبیب شریعت منلی دی
پرته له اسلام نه که څوك بل قانون دستورغواړي
رب ته هرقانون له اسلام پرته نامنلی دی
دا امت منځلاری دی په نورو هم گواه به وي
ورځ کې د حساب یې گواهي لره بللی دی
پرته له الله څخه بنده نه چې څوك طمعه کا
مخکې له قیامت نه په دنیا کې شرمېدلی دی
لاس که شو عادت په اوږدولو کې د بل په لور
ځانته یې کمیس د ذلت تار باندې گنډلی دی
خوند که د شهرت او د شوت په چا جادو وکړي
بیا نو دغرور په توره کنده کې لوېدلی دی
هرڅوك په مسلك کې یو له بل سره توپیر لري
ښځ د عبادت په وحدانیت کې ما موندلی دی
سترگې د سپکوالي که کا چا پرانیستې د بل په لور
تاج د مفلسۍ یې په خپل لاس په سر تړلی دی
صیب په میخانه او رقصخانه کې لانارامه شو
خوان دژوندون خوند به عبادت کې پېژندلی دی
مینه پیغمبر سره له ځان نه هم ضرور گڼم
دا حدیث د مینې مې څو واري ښه لوستلی دی
متن د شعر یو دی خوبیتونه یې با بونه دي
کبر او حسد ما حقوقي په کې غندلی دي

# ومعلوماتي

## دعاء او مناجات

امام ابن القيم ( رحمه الله ) پخپل کتاب (الداء والدواء ) کې ددعاء او مناجاتو په هکله داسې ليکلي دي : يو مؤمن بنده چې د خير پرته د بل څه تصور ترې نه کيږي ، بايد تل د خير دعاء وکړي ، خو په قبليدو کې دې هيڅکله هم بيړه او عجله نه کوي، او داسې دې نه وايي چې خپل پروردګار ته مې دعاء وکړه، خو قبوله نشوه. د دعاء کولو پر مهال دعاء کوونکي ته ښايي چې قبلې ته مخامخ کيني ،د ډيرې عاجزۍ او انکسار نه دې کار واخلي،لومړۍ دې د لوی څښتن تعالی ثناء ووايي ، بيا دې د انسانيت په ستر لارښود (صلی الله عليه وسلم ) درود ووايي، بيا دې استغفار ووايي ، په خپلې دعاء کې د ټينګار نه وروسته، په ډيرې مينې او ليوالتيا سره دې د خپل مقتدر خدای څخه خپلې اړتياوې وغواړي ،نو حتماً به يې دعاوې قبولې شي . (رالیږونکی: محمد خالد ملکزی)

## نصايح لقمان حکيم به فرزندش

- با سود و زيان دوست را امتحان کن!
- با بدان و جاهلان همنشينی مکن!
- با انديشمندان و عالمان همراه باش!
- در کسب و کار نيک جدّی باش!
- بر کوتاه فکران و ضعيفان اعتماد مکن!
- با عاقلان ايماندار مدام مشورت کن!
- سخن سنجيدهٔ همراه با دليل را بيان کن!

-۱ بې ازموينې په بل چا تکيه.
-۲ بې مشورې کوم کار.
-۳ په بل چا ظلم.
-۴ د حق وينا څخه ډډه.
-۵ په بل چا ګوت نيونه.
-۶ د خپلوانو څخه ګوښه توب.
-۷ دارمند خپل نا هيلي

## لباس زن مسلمان بايد چگونه باشد ؟

هدف حجاب در اسلام منع زنان از اشتراک در فعاليت های جامعه و جدا نگهداشتن زنان از مردان يا ايجاد مشکلات برای زنان در انجام فعاليت های زنده گی شان نبوده بلکه هدف اساسی حجاب کمک به طبقه اناث در حفظ وقار و عزت شان به شکل افراد آزاد و انجام ضروريات مشروع شان بطور راحت می باشد.

پس ضروريات حجاب به هيچ وجه رنج آور و مانع نمی باشند.

در ذيل شرايط لباس مناسب اسلامی برای زنان مسلمان ذکر شده اند:

حجاب يا لباس طوری باشد که تمام بدن وی به استثناء روی و دست ها را بپوشاند.

بايد آزاد باشد (چسپ نباشد)

نازک و شفاف نباشد.

لباس که مشخص برای مردان است، نباشد.

پس تا جائيکه لباس شما به اين چهار نکته مطابقت نمايد درست می باشد.

سیدالرحمان عمران

# په سیمه کې دامریکا دپایښت نوې هڅې

موده مخکې په افغانستان کې د امریکا سفیر ګروسمن له یو داخلي تلویزیون سره په یوه مرکه کې وویل: امریکا ډیورنډ کرښه د افغانستان او پاکستان د بیلتون رسمي کرښې ګڼي، او دا د امریکا پالیسي ده.

وروسته لدې چې د ګروسمن خبرو د هیواد دننه او بهر د بیلابیلو افغاني کړیو پراخ غبرګونونه و پارول، او له سفیر نه یې د خپلو خبرو بیرته اخیستل و غوښتل په واشنګټن کې د امریکا د بهرنیو چارو وزارت یوه ویاند د یو خبریال د پوښتني په ځواب کې یو ځل بیا په ډاګه کړه چې ډیورنډ د پاکستان او افغانستان رسمي پوله ده او دا لا له پخوا دامریکا پالیسي ده.

دډیورنډ کرښې په اړه د ګروسمن او نورو امریکایي چارواکو وروستۍ څرګندونې له څو اړخه حیرانونکې دي: لومړۍ دا چې امریکا د تیرو نژدې دوولسو کلونو په ترڅ کې ولې دا خبره نه مطرح کوله چې اوس یې کوي تر دې چې د امریکا پخواني سفیر زلمی خلیلزاد نه په بار بار په رادیویي مرکو کې پدې اړه پوښتنه وشوه، خو نوموړی به ویل چې دا د پاکستان او افغانستان خپلمنځي مسله ده او امریکا پکې غرض نلري. بله داچې پداسې حساس وخت کې چې بهرني ځواکونه له هیواد نه په وتو دي ددې موضوعاتو مطرح کول څه مانا لري؟.



د ۲۰۰۱ سپټمبر نه وروسته چې امریکا په افغانستان باندې پوځي تیری وکړ، پدې پلمه چې ګڼې د سپټمبر پیښې د القاعده تنظیم له لوري ترسره شوي چې مرکزونه یې په افغانستان کې دي، نو باید هغوی یې د له منځه وړلو لپاره په افغانستان برید وکړي. خو که د نړۍ تاریخ ته و کتل شي، او بیا پکې د بیلابیلو سترو جګړو لاملونه و پلټل شي، څرګنده به شي چې د جګړو د ظاهري پلمو تر شا نورې سترې موخې پرتې دي چې د وخت له تیریدو سره را دبره شویدي، د امریکا اوسنی جګړه هم د همدې څنځیر یوه کړۍ ده.

اوس پوښتنه دا ده چې امریکا کوم اهداف لري او آیا خپلو موخو ته رسیدلې که څنګه؟

امریکا له ډیر پخوا نه په سیمه کې دېښې ځای پیداکولو په لټه وه، امریکا که له یوې خوا د اسراییلو د مصونیت پروژه پرمخ وړې، له بلې لوري غواړي له خپلو هغو سترو پوځي او اقتصادي رقیبانو سره چې په سیمه کې وجود لري، هم د سیالۍ ځای پیدا کړي، په یوه ډول یې تر خپل فشار لاندې ونیسي، او هغو هیوادونو کې چې د نوموړو تر تاثیر لاندې دي ور ته ستونزې و زیږوي. نو دې ټولو موخو ته د رسیدو لپاره په افغانستان کې یې شتون ضروري او حتمي دی.

د تیرې لسیزې په ترڅ کې امریکا ډیره هڅه و کړه چې په افغانستان کې ځان ارام کړي، څو دخپلو نورو موخو د پرمخ بیولو لپاره وخت پیدا کړي. خو دا دی وینو چې اوس نژدې ۱۲ کاله تیریږي خوتراوسه هم په هیواد کې جګړه روانه ده، او لایې د پخوا په پرتله شدت موندلی، امریکا ډیره هڅه و کړه چې حالات کنټرول کړي، آن د خپلو ځواکونو شمیر یې زرګونو ته ورساوه خو کومه په زړه پورې نتیجه یې ور نکړه. سره لدې یې هم نورې ډیرې لارې و کارولې، په داخل کې یې په سیاسي ګوندونو کار وکړ، د ولس د بې حیایۍ او لادیني لپاره یې په لسګونو ډول ډول پروګرامونه په لاره واچول، دډیموکراسۍ نغارې یې و ډنګولې، او نورو غولونکو لارو نه یې کار واخیست، څو افغان ولس د بهرنیو منلو ته حاضر کړي، چې بیا وروسته وکړای شي چې څه یې زړه غواړي ترسره یې کړي. خو دې کار څه نتیجه ور نکړه، امریکایان پوه شول چې په افغان ولس باندې ددې چلونو اغیز نشته، افغان ولس په دین مین ولس دی، غرور لري، دغربي کلچر منلو ته حاضر نه دی، نه خپله خپلواکي پرینږودي شي او نه هم د بهرنیو زغملو حوصلې لري.

له بلې خوا افغان حکومت هم دومره نابود او بې مزې وخوت چې آن د ارګ دننه هم ځان نشي ډاډمنولای، نو اوس وخت ددې دی چې امریکایان پدې هیواد کې د مصون اوسیدو لپاره نورې لارې چارې و لټوي.

په ۲۰۰۹م کال کې د سپیني ماڼۍ مرستیال جوبایډن، اوباما ته د نورو عسکرو لیږلو پر مهال مشوره ور کړې وه چې موږ باید افغانستان ته نور عسکر وا نه استوو، بلکې ددې پرځای په پاکستان کار وشي، ځکه د افغانستان د امنیت کیلي له پاکستان سره ده، د نورو عسکرو د لیږلو پر ځای له ډرون یا بې پیلوټو طیارو کار واخیستل شي، او دخپلو کارونو د ښه پرمختګ لپاره باید په پاکستان لازیاته سرمایه ګذاري وشي. خو هغه مهال اوباما د جوبایډن د خبرو په پرتله په افغانستان کې د پوځي قوماندانو خبره و منله او د عسکر لیږلو پریکړه یې و کړه. خو اوس امریکایي چارواکې دې پایلې ته رسیدلې چې د پاکستان له مرستې پرته یې پدې هیواد کې شتون ستونزمن او آن ناشونی دی.

اوس نو چې د پاکستان خبره مطرح ده نوباید د پاکستان غوښتنو او وړاندیزونو ته غوږ کېنبودل شي او د افغانستان پر سر ورسره معامله و کړي.
د پاکستان تر ټولو لویه ستونزه له افغانستان سره د ډیورنډ کرښه ده، دا غوښتنه په وارو وارو د پاکستاني چارواکو له لوري په یوه او بل ډول تکرار شوې او په ډول ډول پلمو هغوی غوښتي چې په یوه ډول دې کرښې ته رسمیت ور کړي.
که پام وکړو د پاکستان پخواني دیکتاتور ولسمشر پرویز مشرف په څو ډوله دا غوښتنه تکرار کړه چې په یوه ډول دې کرښې ته د نسبي رسمیت جامه ور واغوندي. یو ځل یې وویل چې د پولې له هاغه غاړې د طالبانو او نورو مخالفینو د را اوښتو د مخنیوي لپاره باید په کرښه اغزن سیمان را تاو شي، بل ځل یې وړاندیز و کړ چې که داسې نه کیږي نو بمونه دې د کرښې په اوږدو کې فرش شي. چې دا غوښتنه یې هماغه مهال د افغانستان د رسمي چارواکو له غبرګون سره مخامخ شوه او داسې څه یې د ډیورنډ کرښې د رسمیت یوه دسیسه و انګیرله.
له بلې خوا پاکستان هیڅکله نه غواړي په ځنګ کې یو بل مخالف ګاونډی و لري ځکه له هند سره ستونزې لري او په همدې ډول ډیرې نورې ستونزې چې په بار بار په مطبوعاتو کې راغلې دا چې زمونږ ددې لیکنې موضوع هغه نده نو ځکه ور ته ډیره اشاره نه کوو.
د ګروسمن وروستۍ خبرې د همدې حقیقت ښکارندوی دی چې امریکا غواړي له پاکستان سره د افغانستان د امنیت او ځان خوندي کولو په اړه معامله و کړي، نن یې د ډیورنډ کرښې په اړه خپل نظر بدل کړ نور معاملې به یې وروسته را څرګندیږي، افغان حکومت هم د فاسدو او بې مسؤولیته چارواکو پداسې ګیره کې دې چې په دا تیرو دوولسو کلونو کې یې د ولس او هیواد لپاره هیڅ داسې څه و نشوای کړای چې حساب پرې و شي، خو حقیقت دادی چې لاسپوڅي او د نورو تر لاس لاندې حکومتونه نه خپلواکې او نا پییلې پریکړې کولای شي او نه یې هم استعمار دې کارونو ته پریږدي. خو امریکایان دې پدې پوه شي چې دا ډول سیاستونه یې نه په ګټه دي او نه به یې هغو خوبونو ته تعبیر ور کولای شي چې په لټه کې یې دي.
داسې پالیسۍ پرته لدې چې امریکایان نور هم د افغان ولس پر دښمنۍ واړوي هیڅ کومه بله ګټه نلري، د تیرې اوږدې مودې په ترځ کې په افغانستان باندې بیلابیل حکومتونه راغلل او لاړل خو هیڅ یوه یې هم پدې اړه د څه ویلو جرات و نکړ. امریکا پر داسې پالیسیو سره نه خپل ځان مصونولی شي او نه هم د خپل اوږدمهال شتون زمینه برابرولی شي. امریکایان باید له خپلو داسې غولونکو سیاستونو نه لاس واخلي، خپل ابرومندانه وتلو ته لاره هواره کړي، او ناکامو پالیسیو ته دې بیا نګرځي، خو داسې ښکاري چې امریکایان غواړي هره هغه ممکنه لاره و کاروي چې ددوی بقا دلته تضمین کړي، که دا د افغانستان په تجزیې او یاهم له ګاونډیو هیوادونو او یا مخالفینو سره د معاملې له لارې ډاډمنیدلای شي، تر دې چې څو کاله پخوا په غربی رسنیو کې داسې ګنګوسې هم خپرې شوې چې امریکایانو ، طالبانو ته داسې وړاندیز کړی ؤ، که د هغوی غوښتنې ومنلې شي امریکایان حاضر دي حکومت هغویته وسپاري. خو د طالبانو او نورو مخالفینو له رد سره مخامخ شوی وو. په هر صورت امریکا اوس د هغه اوبو غرق کړې په څیر شوی چې د خپل نجات لپاره د اوبو څګ ته هم لاس اچوي.

## دتعمیرملت اواصلاح عالي لیسو

## دزده کوونکوترمنځ

## دیني علمي اوفرهنګي سیالي وشوه

احمدضیأ "عابد"

دغه سیالي چې دجمیعت اصلاح د ( ارزان قیمت سیمیزه ځانګې) په نوښت برابره شوې وه دلږم پراتلسمه دکابل دځرخي پله دګلبازپه سیمه کې ترسره شوه.سیالۍ لیکنۍ اوانفرادي بڼه درلوده اودازموینې ډیرې پوښتنې یې دهغه کتاب څخه وې کوم چې دجمیعت اصلاح افغانستان داحمدشاه بابامېنې اوځرخي پله سیمیزدفترمخکې له مخکې زده کوونکوته ورکړی وه،دې کتاب دیني ،ټولنیزې اوساینسي پوښتنې لرلې .سره له دې چې دا دخپل ډول لومړی سیالي وه خودنظم اوګډونوالودشمېراوتنظیموونکودهڅوله مخې ډېره په زړه پورې وه،په دغې سیالۍ کې چې ټولې چارې یې دجمیعت اصلاح افغانستان داحمدشاه بابامېنې اوځرخي پله سیمیزدفترغړوسمبالولې شاوخوا سل زده کوونکوګډون کړی وه ،ددې سیالۍ په پرانسته کې دجمیعت اصلاح افغانستان احمدشاه بابامېنې اوځرخي پله دسمیزدفترمرستیال مولوي غوث الدین د دې سیالۍ په هکله خبرې وکړې نوموړي وویل داسلام دښمنان تل دا هڅه کوي چې دمختلفو لارونه داسلام وړانګې تتې کړي او رښتیني مسلمانان له خپل برم اوپرتم څخه را وغورځوي اوپه شیطاني کړنو یې سرکړې،موږ ددغې شومې ارادې دمخنیوي اوداسلامي ،علمي اوفرهنګي ویښتابه په موخه دغه سیالي برابروو چې ځوان ورونه دخیر ،ښېګڼې اوحق لورته وهڅول شي .مولوي غوث الدین زیاته کړه چې دایوابتدایې ګام دی،په راتلونکي که به داسې نورعام پروګرامونه هم جوړشي .وروسته دداوړلبسومدیرانوخبرې وکړې اوداسیالي یې دزده کوونکودمعلوماتودزیاتېدواوذهني ودې لپاره ګټوره وبلله اودجمیعت اصلاح افغانستان ددغه سیمیزدفتر دغه کار یې وستایه .همدارنګه دسیالۍ په پای غونډه کې دجمیعت اصلاح افغانستان دتعلیمي ځانګې مرستیال استاذمظفرالدین فایز خبرې وکړې اوهغو زده کوونکوته چې په دغې سیالۍ کې یې ګډون کړی وه اولوړې نمرې یې اخیستې وې ډالۍ ورکړل شوې.



# غزه ها ی مسلمان!
# باری دیگر در خون می تپد!

نویسنده: نصیراحمد کریمی

طوری‌که همه در جریان قرار داریم! در این اواخر یک بار دیگر سرزمین مرد خیز و حماسه آفرین غزه، بار دیگر از سوی صهیونیست های وحشی با حمایت طاغوتیان جنایتکار زمان از جمله امریکای صهیوصلیبی هدف حملات خون‌بار و ناجوان مردانه قرار دارد؛ طوری که عده‌ی کثیری از مردم مظلوم و مستضعف آن دیار، شامل کودکان، زنان و تنی چند از سلحشوران‌مجاهد حرکت مقاومت اسلامی حماس را که همواره آرزوی شهادت را به سر می پرورانده‌اند شهید، و صدها خانوداه را به خاک و خون کشانده ، و قلب امت اسلامی را جریحه دار نموده‌اند! این در حالیست که ملت مظلوم غزه از چندین سال بدین‌سو تحت سخت‌ترین شرایط زندگی و بدون کم‌ترین ضرورت‌های اولیه، زیر محاصره‌ی شدید و ظالمانه‌ی این دژخمیان خون‌آشام بسر می‌برند.

**پیروز شدن اوباما و آغاز حملات:**

درست این حملات بعد از پیروزی بارک اوباما که برای بار دوم به کرسی ریاست جمهوری امریکا رسید، آغاز شد که این قضیه سوال برانگیز بوده و طبق اطلاعات فاش شده طرح حملات و آغاز آن قبلاَ از سوی اسرائیل به امریکا در میان گذاشته شده بود و حمایت و جانب داری بی‌شرمانه‌ی امریکا ازاین موضوع بیشتر پرده برداشت، و یک بار دیگر چهره ی اوباما و دولتش را از ابتدای این دوره، با مسلمانان و امت اسلامی را به نمایش گذاشت.

**تلاش این ددمنشان برای توجیه‌ی جنایات وکشتارشان :**

رژیم اشغالگر اسرائیل و همکارانش سعی دارند به جهانیان تحمیل نمایند که این حملات ددمنشانه در پاسخ به حملات راکتی حماس به مناطق اشغالی و تحت تصرف این رژیم غاصب صورت گرفته و می خواهند بر این جنایات هولناک و بی رحمانه‌ی خود بر ملتی مظلوم که زیر محاصره‌ی شدید این حیوان صفتان درنده خوی قرار دارند بی آن که کمترین دسترسی به ضرورت‌های اولیه حتی آب صحی آشامیدنی کافی داشته باشند، پرده انداخته و آن را توجیه نمایند.




**از سازمان ملل متحد و حقوق بشر چه انتظاری می توان داشت؟**

از سازمان ملل و حقوق بشر که فلسفه‌ی پیدایش و وجودی-شان را حفظ کرامت و آزادی انسان می‌دانند، و مدعی دفاع از حقوق و کیان ملت‌ها اند،و همواره لاف از حقوق بشر و دموکراسی می‌زنند، با توجه به تجربه های تلخ گذشته و تعامل مغرضانه‌ی شان با جهان اسلام و امت اسلامی، نباید انتظاری و

یا گلایه داشت چرا که ایشان بارها به اثبات رسانیده‌اند که مدعیان کاذبی بیش نبوده و همیشه در مقابل مسلمانان سیاست دوگانه و سیاست یک بام و دو هوا را داشته اند. و گرنه! در مقابل اتفاقات اخیر و صحنه‌های دلخراش که در میانمار که منجر به آتش کشیدن هزاران انسان مسلمان بی گناه همراه با خانه و کاشانه‌ی‌شان گردید. چه کرده‌اند! که حالا از ایشان انتظاری داشته باشیم ! تا نظاره گر این جنایات وحشیانه و دور از انسانی برملت مسلمان فلسطین و غزه نباشند. تا جای‌که بانکی مون سرمنشی سازمان ملل از هر دو طرف خواهان آتش بس می شود. و اینگونه به اصطلاح دزد و صاحب خانه را به یک صف قرار می دهد. اگر این‌ها مجاهد مردان حماس و ملت مبارزه فلسطین را تروریست می خوانند و با این بهانه و افترای بی‌شرمانه می خواهند چهره‌های- مکارشان را در ورای پرده‌های چون صلح جهانی، دموکراسی و حقوق بشر بپوشانند. در مقابل مسلمانان بی دفاع روهینگاه درمایانمار چه پاسخی می توانند داشته باشند. بنا بر این، نباید هیچ انتظاری از ایشان داشت، زیرا اربابان‌شان در شورای امنیت به ایشان گوشزد نموده اند که ماجرای فلسطین به هر قیمتی که می‌شود باید به نفع یهود صهیونست و رژیم اشغالگر قدس ختم گردد . و حرکت مقاومت اسلامی حماس که از متن مردم برخاسته و همه‌ی امید ملت فلسطین و امت اسلامی است! باید از میان برداشته شود. اما ایشان کور خوانده اند! چرا که روحیه شهادت طلبی و استقامت بی نظیر حماسیان ـ زن و مردشان ـ و ملت مبارز و دلیر فلسطین در طول تاریخ مبارزه به اثبات رسانده که این ملت نه تنها تسلیم نگردیده بلکه تا پیروزی و تحقق آرمان های‌شان از مبارزه وجهاد مبارک فی سبیل الله و شهادت در راه آن دست بردار نیستند! ـ زهی سعادت برایشان باد ـ امروزه علی رغم سکوت ننگین و شرم‌آور بعضی از حکام کشورهای عربی و اسلامی، ملت های آن‌ها و حکومت‌ها و کشورهایی چون مصر محمد مرسی و ترکیه‌ی رجب طیب اوردغان و تمام امت اسلامی در کنار حماس و ملت مجاهد غزه اند. این روزها ملیون‌ها مسلمان در سراسر جهان برای پیروزی حماس ،ملت مظلوم غزه ، و شکست و رسوایی دشمنان خون آشام‌شان دست دعا را بلند کرده اند، و آماده‌یی هرنوع همکاری ، قربانی و در صورت نیاز بسیج عمومی وهراقدام دیگراند. طوریکه طبق گزارشات منتشر شده، تعداد زیادی از جوانان‌مخلص و جان برکف مصری از طرف شب با عبور از منطقه‌ی مرزی رفع وارد نوار غزه جهت همکاری و مبارزه با برادان فلسطینی شان گردیدند. و فراتر ازهمه این توان و نیروها، حماس و ملت ستم‌دیده غزه تائید و نصرت الله متعال را با خود دارند! که فراتر از هر قدرتی در جهان میباشد. آری! یاور و پشتیبان مومنین و حماس الله متعال است.

تکرار حملات و مقاومت جانانه‌ی حماس: این بار اول نیست که این حملات جنایتکارانه و وحشیانه از طرف رژیم سفاک اسرائیل بر نوار غزه صورت می پذیرد، و آخرین بار هم نخواهد بود. بلکه چنین حملاتی و حتی خیلی بدتر و خطرناک تر از این را انجام داده، که هیچ یکی از این حملات نتوانسته مقاومت حماس را ـ که درقلب ملتش جای دارد ـ را از بین ببرد. و این بار نیز اسرائیل بزدل جرأت نکرده تا حرفی مبنی بر نابودی کامل حماس به میان بیاورد. چرا که می داند! نابودی حماس یعنی نابودی ملت فلسطین و این برایش ناممکن است.این حملات نیز یکی از حملات جنایاتکارانه و ددمنشانه‌ی‌است که برفهرست طویل جنایات این جنایت پیشگان خون آشام افزوده می‌شود. اما اکنون رسالت ما منحیث یک ملت مسلمان و پیکره‌ی از امت اسلامی این است، که از غفلت مرگبار به خود آییم! و هم صدا و همگام با مجموع امت اسلامی آماده‌ی هرنوع همکاری و قربانی با برادران مان در فلسطین و سراسرعالم گردیم! و با الهام گیری از ایشان تصمیم گیریم که هیچگاه در مقابل دشمنان قسم خورده‌ی اسلام و مسلمین تسلیم نگردیده،و با ایشان سازش و معامله‌گری ننماییم! و در اخیر اینگونه دعا می نمایم پرودگارا! به بزرگی وجلالت، دشمنان خون آشام غازیان غزه را خوار و زبون بگردان! سرزمین مبارک قدس وهمه‌ی سرزمین-های اسلامی را از زیر چتر استعمار و نظام‌های ظالم و دست-نشانده آن آزاد گردان! ـآمین یا رب العالمین ـ



# زما ملا اوس هم

محمد بلال خدمت.

# له نن څخه په سلګونو کاله وړاندې شهیدان لمانځي

ماښام مې تبه شوه او ډیر سخت ساړه مې ورسره کیدل په ځان مې داسې یوه غټه بړیستن خوره کړه چې د دروغجن خبره که څوك یې په سالنګ کې هم په ځان واچوي نو ګرمي به یې وشي؛ خو بیا هم ترې لاندې زما ژامې رپیدې، کمپیوټر راسره خوا کې ایښې وه، ویل مې راځه یو ځل خپل فیسبك وګوره چې څه خبرې دي، په مجرد چې فیس بك مې خلاص کړ هرې خواته د غزې لفظ لیکل شوی، هك حیران شوم خدایه بیا څه پیښ شوي، بیا زمونږ د زړه ټوټه چا دردولې چې هرخوا د غزې تصویرونه خپاره دي، ګورم چې په یوه تصویر کې د غزې له تړانګې وینې بهیږي، ها بل تصویر ته ګوره چې یوې مور خپل ګرد وهلی ماشوم په غیږ کې نیولی او ژاړي،بلې خوا تصویر کې څو مجاهد ځوانان خپل رب ته په سجدو پراته دي، داسې ښکاري لکه له خپلو نورو ورونو څخه چې ناهیلي شوي وي او یواځې د خپل رب غائبانه مرستې ته سترګې په لار وي چې ناڅاپي مې یو بل انځور ترسترګو شو، په انځور کې یواځې یوځوان ده چې تر شا یې د حماس او القسام بیرغ ترسترګو کیږي ښایسته خندنی عکس یې اخستل شوی د برنۍ ژامې د ثنایا غاښونو ترمنځ یې لږ فاصله هم شته خو خدای شته چې ځوانۍ یې دا وړه خامي ترخپل سوري لاندې راوستې وه، د دې تصویر په لیدو سره نور هم وارخطا شوم. ځان سره مې فکر وکړ چې دا څوك کیدلی شي. لږ شیبه وروسته دې نتیجې ته ورسیدم چې د حماس تر جنډې لاندې د هرچا تصویر نشي راتللی، دې ځوان خامخا ځان دشیخ احمد یاسین،یحیی عیاشي، صلاح مصطفی،عبدالعزیز.... په قطار کې راوستلی، تر دې وروسته مې چې د دفضل هادي وزین صیب په فیسبك پاڼه عاجل خبر ولید ، چې په ډیر دردیدلي انداز لیکل شوی وه چې لیکنې یې په چغو چغو دا خبر هرچاته رسوه، زه یې هم خورا ودردولم تبه مې هیره شوه، باور مو وشه له هماغې لحظې څخه لکه لیونی داسې شوم، داسې لکه څه چې رانه ورك شوي وي هره دقیقه مې د خبري سروسونو سایټونه کتل چې کچیرې د خوشحالې کوم خبر واورم او یا حد اقل د هغه ورونو له حاله لږ څه زیات خبر شم، چې د شپې ویده کیدم ډیر خفه وم خو یو څه هیله مند پدې وم چې فکر مې کاوه پدې سره به سهر د مسلمانانو لخوا دیر سخت غبرګون ښودل شي او دا به د یو ستر انقلاب پیلامه وي.

سهر چې له کور څخه بیرون ووتم ګورم چې هرڅه هماغه شان دي، ټول خلك په خپلو کارونو بوخت دي ، ټول خلك خوښ بریښي او هرڅوك په بیل بیل انداز د ځان د راحت ښودلو اکټونه کوي او په یو او بل ډول خپلې شخیانې اوباسي، زه حیران شوم چې هغه خبر چې ما اوریدلی، که څوك یې واوري نو داسې خوښ نشي پاتې کیدلی نو یا ما خوب لیدلی او یا داچې بلې دنیا ته راغلی یم، ځکه دا خو د هغو انسانانو دنیا نشي کیدلی چاته چې الله تعلی د رحم،زمیر، احساس، زړه سوی.... مادې ورکړي دي؛ خو بیا مې ځان پدې غلط کړ چې دا خو زمونږ نالوستې طبقه ده ، دوي کله له نیټ فیس بك نه خبر دي، کور ته راغلم بیا مې د العربیه ټکی نیټ پاڼه وکتله ګورم چې د د.محمد مرسي لخوا سخت غبرګون ښودل شوی وه، چې مونږ خپل سفیر له اسرائیلو راوغوښت او د هغوی سفیر مو احضار کړی، نو ما هم په همدې یو خبر اکتفا وکړه.

په سبا چې پوهنتون ته لاړم له هر ملګري سره تر سترې مشې وروسته مې، لومړی پوښتنه همدا وه چې د غزه په اړه خو به څه خبر نلرې؛ خو بدبختانه چې اکثریتو خو لاغزه پیژندله هم نه، ترې ومې پوښتل چې آیا تاسې تلویزیون نه ګورئ، آیا تاسې نیټ ته نه کښینئ، ټولو ویل چې ګورو یې خو ډیرو ویل چې مونږ خو پکې ډرامې او فلمونه ګورو او پاتې ډیر کم سلنه ځوانانو چې خبرونه کتل هم، وویل چې مونږ خو د غزه په اړه څه ندي اوریدلي، دا پداسې حال کې چې د پاکستان خبري رسنۍ دومره زیات وخت لري چې د خپل ورځني تقسیم اوقات د ډکولو لپاره خو یا پروګرامونه تکراري خپروي او یا هم د پاکستان د یوې ګنده ویالې په اړه ۳۰ـ۴۰ دقیقې راپور وړاندې کوي ، له ځان سره مې وویل چې دا د عصري علومو زدکونکې دي له دوي څخه څه ګیله، دوی پریږده چې انګلسي فلمونه وګوري ترڅو ښه انګلسي زده کړي او یا هندي فلمونه وګوري چې د نویو جامو ډیزاینونه زده کړي.

زما هم ټولې هیلې د جمعې لمانځه ته پاتې شوې، زړه کې مې ویل چې دا خو د دین عالمه طبقه ده، نو خامخا به د دې جمعې د وعظ موضوع فلسطین وي.

د جمعې ورځ شوه، زه د کور په کارونو کې لږ څه مصروف شوم چې پدې سره د جمعې د وعظ یو څه برخه راڅخه تیره هم شوه، بلاخره له خپل پلار سره یوځای د مسجد پر لور ران شوم، مسجد ته چې لږ څه نژدې شوم د شهادت او شهید کلمې مې ترغوږو شوې، په زړه کې ډیر خوښ شوم چې حد اقل که نورڅه ونشول د دې دردیدلي ولس په اړه خو به مسلمانان خبر شي او دعا خو به ورته وکړي؛ خو چې مسجد ته ورسیدم او امام ته مخامخ کښیناستم نو پوه شوم چې زما امام اوس هم له نن څخه په سلهاوو کاله مخکې شهیدان لمانځي د امام حسین(رح) مقام پرخپل ځای خو زما هغه حسین چې پرون د یرغلګرو لخوا په شهادت رسیدلی او ټوټې ټوټې له خپل موټر راویستل شوی د هغه د شهادت ګواهي به څوك ورکوي او هغه به څوك لمانځي. د امام حسین(رح) په یاد کې خو به څو ورځې وروسته زیات خلك چړې اوچتې کړي او وینې به تویې کړي خو آیا داسې څوك هم شته چې د دې حسین لپاره لاسونه پورته کړي،اوښکې تویې کړي،دعا وکړي او د دې کربلا د پای غوښتنه وکړي.

تر لمانځه وروسته ناهیلی کور ته راغلم او د هشام قندیل په سفر مې بسنه وکړه، له ځان سره مې وویل چې دا ملت ویده نه، مړ ده، ځکه د فلسطین دا قضیه د هر ویده لپاره د سهر د هغه اذان حیثیت لري چې هر ویده به راویښ کړیی؛ خو دې ملت پرې غوږ هم ونه ښوروه نو دا ملت ویده نه بلکې مړ ده.

زمونږ د عصري علومو زدکوونکي په هغه تخیلي دنیا کې اوسیږي کومه چې زر کاله وروسته هم راتلونکې نده او د دیني علومو علما مو په هغه دنیا کې اوسي کومه چې زر کاله مخکې تیره شوې، نو ځکه زمونږ ملت ویده نه زمونږ ملت مړ ده؛ خو اسلام مړو ته ضرورت نلري او نه هم مړي اسلام ته څه ګټه رسولی شي، اسلام هغه چاته ضرورت لري او هغه څوك ورته ګټه رسولی شي کوم چې پدې زمانه کې اوسي او ژوندي وي نو ځکه الله تعلی فرمایي چې ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّى يُغَيِّرُوا مَا بِأَنْفُسِهِمْ﴾، خو بدختانه چې دا ډول اشخاص ډیر کم دي نوځکه مونږ اکثریت د اقلیتو د زور نه یوو.

قسمت دوازدهم

# با فرزندانت زیاد محبت کن

نویسنده: دکتور.سمیر یونس
مترجم: محقق عبدالرحمن حکیمزاد

فرزندان مان عطیه و بخشش الهی اند قسمیکه الله متعال فرموده اند: " لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ يَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ إِنَاثًا وَيَهَبُ لِمَن يَشَاءُ الذُّكُورَ. أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَاثًا وَيَجْعَلُ مَن يَشَاءُ عَقِيمًا إِنَّهُ عَلِيمٌ قَدِيرٌ". سورهٔ الشورى: ۴۹- ۵۰

(فرمانروایی [مطلق] آسمانها و زمین از آن خداست هر چه بخواهد می‌آفریند به هر کس بخواهد فرزند دختر و به هرکس بخواهد فرزند پسر می‌دهد. یا آنها را پسر[ان] و دختر[انی] توام با یکدیگر می‌گرداند و هر که را بخواهد عقیم می‌سازد اوست دانای توانا).

دوست داشتن اولاد سرشت انسانی، طبیعت بشری و وجیبهٔ شرعی است که بر والدین محبتِ پسران و دختران را فرض گردانیده است؛ چنانچه دعای بنده های مخلص الله "در طلب اولاد" در قرآنکریم اینگونه نقل شده است: "وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا". سورهٔ الفرقان: ۷۴

(و کسانی‌اند که می‌گویند پروردگارا به ما از همسران و فرزندانمان آن ده که مایه روشنی چشمان [ما] باشد و ما را پیشوای پرهیزگاران گردان).

شاعری میگوید: فرزندانم چو جگرم اند که بر زمین میگردند
اگر بر بعضی از آنها بادی بوزد چشمم از بندش، امتناع می ورزد.



فرزندانت را دوست بدار که آنان ترا دوست بدارند. محبت و شفقتِ والدین با اطفال باعث جا گرفتن محبت والدین در دلهای فرزندان شده و فرزندان را وامیدارد که با والدین خویش نیکی نمایند، اما برعکس سختگیری، جفاء و بر خورد تند با آنها، سبب نفرت و نافرمانی و دوری اولاد از والدین میگردد.

این حقیقت را باید والدین بدانند که محبت شان با اطفال شان سبب محبت و نیکی اولاد با ایشان شده و خانواده جمعاً در فضای خوشبختی ای که آگنده از محبت، شفقت و رحمت باشد، زندگی مینمایند.

**پدرانی در آسمان محبت:** امام نسایی به اسناد صحیح از عبدالله بن شداد روایت نموده که گفت: هنگامیکه رسول الله صلی الله علیه وسلم به مردم نماز میدادند، حسین "نواده اش" نزدش آمد و در حالت سجده بر گردنش سوار شد، چون سجده طول کشید، مردم گمان کردند که کدام حادثهٔ رخ داده است، وقتیکه نماز تکمیل شد، علت "تأخیر" را از ایشان پرسیدند، پس پیامبرعلیه السلام فرمودند: (پسرم بر شانه هایم سوار شده بود بناءً بد پنداشتم که عجله نمایم تا آنکه وی ضرورتش را برآورده سازد). أحمد بن شعیب أبو عبد الرحمن النسائی سنن النسائی، ج: ۲، ص: ۲۳۹، تحقیق : عبدالفتاح أبو غدهٔ، مکتب المطبوعات الإسلامیهٔ – حلب، چاپ: دوم، ۱۴۰۶ – ۱۹۸۶م.

امام بخاری در کتاب صحیح خویش از ابی قتاده نقل میکند که پیامبرعلیه السلام فرمودند: (وقتیکه به نماز بر می خیزم، میخواهم نماز را طولانی نمایم ولی زمانیکه صدای گریان طفل را می شنوم، نمازم را کوتاه می سازم تا "نماز" بر مادرش گران تمام نشود). صحیح البخاری

ابراهیم بن داحه به یکی از والدینش نوشت: خداوند مرا فدایت بگرداند، مرسل الیه در جواب چنین نوشت: اینگونه "نامه" نوشته مکن، تو نسبت به صبریکه در وقت فقدانت می کشم، نزد من قدر و منزلت زیاد داری. (الراغب الأصفهانی: محاضرات الأدباء، ۱ / ۱٤٦).

از محمد بن منکدر نقل است که برای فرزنش گفت: ای فرزندم! سوگند به الله من در نمازم بسیار زیاد آرزوی صلاح ترا مینمایم.

ریاشی عاطفهٔ راستین محبت پدر به فرزندش را طی نظمی چنین تعبیر نموده است: فرزندم! تو برایم چراغ روشن زمانی، چنان دوستت دارم که وصف آن ناممکن است. فرزندم! آیا چیزی دیگری وجود دارد که نزد من، نسبت به تو عزیز تر باشد. وقتی بخندی تمام اوقاتم برایم خوش سپری میشود و وقتی لبِ شکایت بگشایی، تمام دور و بر خود را، خشک و خالی می بینم.

پدرانیکه اولادشانرا عاق کرده اند! بعضی والدین در برخورد خویش با فرزندان شان جز سختگیری، سنگدلی و ترشرویی، زبان تفاهم و گفتگو را نمی شناسند، و گمان میکنند که این بهترین روش تربیت است. بناءً وقتی وارد منزل میشوند باید نشسته بر خیزد، استاده خود را درست نماید، خوابیده بیدار شود، سخن زننده خاموش شود و خنده کننده، از خنده دست بکشد، این پدران جز دُره و اعصاء چیزی دیگری را نمی شناسند، پس اینگونه پدران از اولاد خویش جز جفاء، نفرت و نافرمانی از "فرمان شان" انتظار چیز دیگری را نداشته باشند.

مردی بحضور عمر بن خطاب رضی الله عنه آمد و از نافرمانی پسرش شکایت نمود، عمر به احضار پسر وی امر نمود، و ویرا به علت سرکشی از پدرش سرزنش کرد، پسر گفت: ای امیرالمؤمنین! آیا فرزند هم بالای پدرش حقوقی دارد؟ عمر فرمود: بلی بالای پدرش حقوق دارد، پسر گفت: آنها کدام است؟ عمر رضی الله عنه فرمود: در انتخاب مادر دقت نماید، نام خوبی بالایش بگذارد و قرآن را برایش بیاموزاند. پسر کفت: ای امیرالمؤمنین! پدرم چنین نکرده است، مادرم از نسل زنگی است که در قید نکاح مرد مجوسی ای بود، نامم را قانغوزک گذاشته و یک حرفی از قرآن را برایم تعلیم نداده است. عمر رضی الله عنه به مرد شاکی رو آورد و فرمود: (آمده ای تا از نافرمانی پسرت شکایت نمایی در حالیکه قبل ازینکه از تو نافرمانی کند، ویرا عاق نموده ای، و قبل ازینکه به تو بدی نماید، با وی بدی نموده ای).

امام بخاری در کتاب صحیح خویش روایت کرده که در نزد رسول الله صلی الله علیه وسلم شخصی بنام اقرع بن حابس بود، وی مردی سختگیر و سنگدل بود، وقتیکه پیامبرعلیه السلام را دید که حسن و حسین را بوسید گفت: شما فرزندان تانرا می بوسید؟ سوکند به الله من ده فرزند دارم ولی هیچکدام آنها را نبوسیده ام، پیامبرعلیه السلام بالای وی به قهر شد و فرمود: من مالک این نیستم که رحمت از دلت بیرون شده است؟!! محمد بن إسماعیل أبو عبدالله البخاری الجعفی، صحیح البخاری، ، باب رحمهٔ الولد و تقبیله، ج: ۵، ۲۲۳۵، تحقیق : د. مصطفی دیب البغا أستاذ الحدیث وعلومه فی کلیهٔ الشریعهٔ – جامعهٔ دمشق، دار ابن کثیر ، الیمامهٔ – بیروت، چاپ: سوم، ۱۴۰۷ – ۱۹۸۷.

بعضی پدران چنان اند که اگر از ایشان بپرسی: چند بار به فرزندت گفته ای: ترا دوست دارم؟ از سخن تو به حیرت دهانش را باز خواهد نمود، در حالیکه پیامبرعلیه السلام برایمان یاد داده که محبت خود را به آنها اعلام نماییم. حبیب

بن ابی سبیعهٔ ضبعی از حارث روایت کرده که شخصی در حضور پیامبرعلیه السلام بودند که مردی از پیش آنجناب گذشت و گفت: ای رسول الله! ویرا بخاطر خدا دوست دارم. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمودند: آیا ویرا خبر داده ای؟ گفت: خیر، پیامبرعلیه السلام فرمود: نزد وی برو و محبتت را برایش اظهار بدار، شخص مذکور نزد آن مرد رفت و گفت: ترا بخاطر خدا دوست دارم، آن مرد دیگر جواب داد: ذاتی که بخاطر وی مرا دوست داری، ترا دوست بدارد. سنن النسائی

در صورتیکه این محبت در قسمت کسی باشد که با تو رابطهٔ نسبی ندارد، پس در مورد اولاد و جگر گوشه ات چگونه خواهی بود؟! آنها نزدیک ترین مردمی اند که باید محبت خود را برایشان ابراز نماییم.

**دوست داشتن اولاد و تربیت وجدانی آنها:** تحقیقات تربیتی تأکید دارند به اینکه: خانه هایی که به اساس محبت استوار باشند و پدران و مادران فرزندان خویش را دوست میدارند، این اطفال از صحت خوبی بر خور دار میباشند، چنانکه آنها به صفات خوب دیگر، از قبیل اعتماد به نفس، توانایی به نتیجه رسیدن، تفوق در دروس، استقلال، روابط مثبت با دیگران و سایر صفات پسندیدهٔ دیگر، موصوف میباشند.

دانشمندان تربیت اشاره دارند به اینکه تربیت وجدانی انتهای هدف و میوهٔ است که از عملیهٔ تربیت حاصل میشود، بنابرین تربیت وجدانی عبارت از تهذیب نفس، رشد مشاعر و مزین شدن به اخلاق عالی میباشد، ازین رو بر پدران لازم است تا در برخورد و تربیت شان با اطفال شان تجدید نظر نمایند، و چقدر مهم است که آنها را به اساس محبت تربیت نماییم.

بر فرزندت منت مگذار، طوریکه قرآنکریم روش فرعون با موسی علیه السلام را که در خانهٔ وی کلان شده بود، به گونهٔ مذمت، یاد آور شده است: " قَالَ أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ. وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِي فَعَلْتَ وَأَنتَ مِنَ الْكَافِرِينَ". سورهٔ الشعرآء: ۱۸- ۱۹

(فرعون] گفت: آیا تو را از کودکی در میان خود نپروریدیم و سالیانی چند از عمرت را پیش ما نماندی. و [سرانجام] کار خود را کردی و تو از ناسپاسانی).

فرعون "با مواجه شدن با موسی علیه السلام" مصارفی را که بالای موسی علیه السلام نموده، یاد نموده و در صدد اذیت وی شد. اکثر پدران و مادران نیز این اسلوب فرعونی توأم با منت و احسان و اذیت را بکار می برند، طوریکه یکی از آنها برای پسرش میگوید: آیا به یاد نداری که با تو چه کاری کرده ام؟ به یاد نداری که به چه اندازه مالم را برایت دادم؟ و ثروت زیادی را در خدمتت گذاشتم؟ بخاطر تو هست و بودم را ضایع ساختم، برخود سختی گرفتم اما برای تو دادم، افسوس بر تو و افسوس بر مصارفی که بالای تو نموده ام!

بیان قصهٔ دوستی در روابطِ پدر و فرزند مؤثریت زیاد دارد، شیخ خالد خلیوی موقف زندهٔ را متجسم می سازد که در روابط بین پدر و فرزند رول زیادی دارد طوریکه میگوید: جهت آوردن پسرم از مدرسهٔ متوسطه، به مدرسه می رفتم، روشهای مختلفی را از پدران در برخورد با فرزندان شان مشاهده نموده ام که برخی آنها نا آرام کنند و بعضی آن شادمان کننده میباشد، در میان آنها پدری بود گویا باغچهٔ از شفقت، عطوفت و دوستی است، ویرا در حالی دیدم که چنان در انتظار دخترش است که گویا سالها ویرا ندیده است، وقتی دخترش بیرون شد ویرا بوسید، بیکش را گرفت و دستش را بالای شانه اش گذاشت و همانند دو دوستِ صمیمی بسوی موتر در حرکت شدند.

شیخ خالد میان این پدر و پدران دیگر در عین نمایشنامه "دروازهٔ مدرسه" اینگونه مقایسه نموده و می افزاید: یکی ازین پدرانیکه "جهت انتقال دختران از مدرسه به خانه آمده اند"در داخل موتر در انتظار دخترش است، دومی تا وقتیکه دخترش را می بیند "در نزدیک دروازه" منتظر دخترش است و به مجردیکه ویرا می بیند به تیزی بالای موترش سوار میشود و دختر را میگذارد تا چون چارپایی که در عقب صاحبش می رود، در عقبش بیاید! سومی از بس که بالای دختر خشم گرفته بود، بسوی دخترش به نظر شک می بیند که آیا این دخترش است و یا خیر، نه در برابرش می خندد، نه از آمدن وی شادمان میشود و نه وقتیکه نزدیکش میشود، برایش سلام میدهد، چهارمی به علت تأخیر آمدنِ دخترش که شاید تأخیرش به اختیار وی نبوده باشد، ویرا چنان تهدید میکند و دشنام می زند و احساسش را مجروح میکند که علت تقصیر دختر نیز برایش معلوم نیست؛ بلکه در میان اینها دختری را نیز می بینی که مانند یتیمی که پدر ندارد، تنها استاده است، و برای انتقال دختر دیگری راننده آمده، محرمی وجود ندارد، ویرا به رانندهٔ گذاشته که بعضاً این راننده مسلمان نیست و احیاناً بالای وی تجاوز نیز مینماید!

بدون شک نمونهٔ از پدر الگو را که شیخ خالد در آغاز این برخوردها بیان داشت، دارای قلب فراخ و مهربان است دخترش را به رشته هایی از عطوفت راستین و شفقت بی پایان در بر گرفته که چقدر به چنین پدر مشفق نیاز داریم! این نمونهٔ است که تربیت را دانسته و حقیقتِ آنرا به تجربه گرفته و به تربیت وجدانی و نموی روح و رشد قلب اهتمام کرده و بخشش اش از محدودهٔ خوردنی و نوشیدنی و پوشیدنی فرا رفته است ازین رو به تربیت وجدان پرداخته است.

بناءً این دختر خالیگاه عاطفی ای را نمی یابد که در صدد کسی برآید تا آنرا پر نماید اگرچه از راه غیر شرعی نیز باشد . . . چون پدرش توانسته است سعادت روانی، استقرار قلب و اطمینان روحی ویرا متحقق بسازد تا آنکه شوهر صالحی را خداوند نصیبش کند.

چه تعداد پدرانی اند که بر پسران و دختران خویش ظلم روا میدارند! آنانیکه فرزندان خویش را از ادنی ترین عبارات محبت، عطوفت و مهربانی محروم کرده اند. . . ای پدریکه این سطور را میخوانی! چند بار به دخترت عبارات: دوستم، فرزندم، زندگانیم، فرزند زیبایم، سردی چشمم، توتهٔ جگرم و . . . را بکار برده ای؟

عدهٔ از پدران فرزندان شانرا با کلمات: تنبل، ناکام، پرگو، عقب مانده، بی حیاء و سایر کلماتیکه زشتی را افزایش میدهد، مورد خطاب قرار میدهند ولی برغم اینهم "این کلمات زشت" بر زبان بسیاری از پدران و مادران حتی در حضور دیگران نیز جاری میباشد که باعث تجریح مشاعر و اذیت احساسات اطفال شان میگردد!

آنچه بیشتر انسان را به حیرت می اندازد اینست که پدر سخت دلی نزدت بیاید و از دختر و پسرش شکایت نماید که برغم اینکه برایشان تمام سهولت های زندگی را تهیه دیده و در آن کوتاهی نکرده، اما آنها در درس ضعیف اند، "در میان همقطاران شان" بی نام و نشان اند و یا در رفاقت با اشخاص بد اخلاق و منحرف، اصرار می ورزند!

بلی، ای پدر مشوش! برای فرزندانت غذاء، آب، لباس، "اسباب" بازی و ابزاری را که اخلاق را متزلزل می سازد، مهیا ساخته ای، ولی چیزی را که هر انسان به ویژه اطفال به آن نیاز دارند تا برایشان مهیا شود، تهیه نکرده ای که عبارت از محبت، عطوفت و مهربانی میباشد!

ای پدر! ترا چه شده که رحمت و مهربانی را از قلبت بیرون کرده ای؟! آیا به سخن پیامبرعلیه السلام که برای اقرع بن حابس که دارای ده فرزند بود و هیچ یکِ آنها را نبوسیده بود، تأمل کرده ای؟ که پیامبر رحمت و هدایت صلوات الله و سلامه علیه برایش فرمود: "آیا من مالک این هستم که خداوند رحمت را از دلِ تو بیرون کرده است؟"!.

محمد بن إسماعيل أبو عبدالله البخاري الجعفي، صحيح البخاري، باب رحمة الولد و تقبيله، ج: ۵، ص: ۲۲۳۵، تحقيق : د. مصطفى ديب البغا أستاذ الحديث وعلومه في كلية الشريعة – جامعة دمشق، دار ابن كثير ، اليمامة – بيروت، چاپ: سوم، ۱۴۰۷ – ۱۹۸۷.



# په مشرقي کې

# "دامت د هيلو په لار"

# تر سرليک لاندې سيمينار

راپور: قدرت الله جاهد

په ختيز زون کې د جمعيت اصلاح غړو د ۱۳۹۱ کال د لړم (عقرب) د مياشتې له ۲۴مې تر ۲۶مې نېټې "د امت د هيلو په لار" تر عنوان لاندې درې ورځنی سيمينار ترسره کړ چې په کې د جمعيت اصلاح د ختيز زون ۱۸۶ غړو او د کابل او کندهار څخه راغلو ميلمنو برخه واخيسته.

د سيمينار پيل د چهار شنبې په ماښام ۵:۳۰ بجې د قاري صاحب سيد احمد هاشمي په خوږ غږ د قرآن عظيم الشان په تلاوت سره وشو. د تلاوت څخه وروسته د سيمينار عمومي مسؤول استاد عبدالرحيم صراف ګډونوالو ته ښه راغلاست ووايه او اړوندې لارښوونې يې ورته وکړې.

وروسته د سيمينار ټولو ګروپونو ته مسؤولين وټاکل شول او هر ګروپ ته د ويده کېدو او راټولېدو ځای ورپه ګوته شو.

د سيمينار لومړی ويناوال د جمعيت اصلاح د مرکزي شورا غړی او د ننګرهار پوهنتون استاد مولوي محمد شريف رحماني و چې په خپله موضوع (د الهي مرستې او غلبې وړ نسل) يې په زړه پورې خبرې وکړې.

د سيمينار په دويمه ورځ د سهار تر لمانځه وروست د تقوی په اړه د حديثو لنډ درس استاد عتيق الله ثاقب وړاندې کړ. لدې وروسته د امام ابو يوسف دارالعلوم استاد شيخ القرآن مولوي امين الله ازره وال د حب فی الله تر عنوان لاندې درس وړاندې کړ. هغه د خپلو خبرو په اوږدو کې زياته کړه چې مونږ او تاسو دلته په ايماني جذبه راغونډ شوي يو نو بناً بايد ټول يو له بل سره د الله لپاره د محبت اظهار وکړو.

وروسته د جمعيت اصلاح د مرکزي شورا رئيس استاد نصير احمد نويدي په وينا پيل شوه.

استاد د سيمينار له دايريدلو څخه خوښي وښوده او په همدې کال کې يې د افغانستان په مختلفو زونونو کې د جمعيت اصلاح د سيمينارونو ياودنه وکړه او ټول يې وستايل. استاد وويل چې موږ ټول د جمعيت اصلاح سرهددې لپاره يوځای يو چې اول ځان او بيا دا ملت د دې ستونزو او حالت نه وباسو، ستاسو د هڅو په برکت او د الله جل جلاله په فضل نن جمعيت اصلاح په خلکو کې يو ياد جريان دی او ټول پرې حساب کوي.

استاد په خپله وينا کې ټينګار وکړ چې موږ ټول بايد په خپلو واجباتو پوه اوسو او پاملرنه ورته وکړو، په نيت کې اخلاص ولرو، د جمعيت اصلاح د اهدافو ساتنه وکړو چې لوی هدف مو د الله د دين اقامت او له دې لارې د الله رضا لاس ته راوړل دي، د سمعې او طاعت پابندي او يو په بل اعتماد وکړو، فردي دعوت وکړو، خپلو کورنيو ته پوره توجه وکړو او له ځانه وروسته يې د اصلاح کولو هڅه وکړو او په راتلونکي باور ولرو او د نفسي شکست نه ځان وساتو ځکه دا الله تعالی موږ سره وعده کړې چې (ولاتهنو ولاتحزنو وانتم الاعلون ان کنتم مومنين). استاد د خپلو خبرو په پای کې وويل چې زموږ او ستاسو راتلونکې مقابله د سيکولرستي حرکوتو سره ده چې بايد ورته پوره اماده او چمتو اوسو.

د تنظيمي کار غوښتنې او ضوابط د ښاغلي مولوي محمد نعيم جليلي د وينا موضوع وه چې سهار لس بجې يې پېل کړه. مولوي صاحب په تحريکي کار رڼا واچوله او دهغه ارزښت يې په ګوته کړ.

د جمعيت اصلاح د ختيز زون مشر دکتور نجيب الله صالح دسيمينار بل ويناوال ؤ چې په اوسني وخت کې زموږ د لومړيتوبونو په اړه يې خپله وينا وړاندې کړه.

د دويمې ورځې بل ويناوال د جمعيت اصلاح د مرکزي شوری غړی او د سلام پوهنتون استاد ښاغلی دکتور مصباح الله عبدالباقي و چې موضوع يې (د اسلامي حرکت ماضي، حال او راتلونکې) وه.

د ماسختن د ډوډۍ او لمانځه له وقفې وروسته د جمعيت اصلاح رئيس محترم دکتور عبدالصبور فخري د جمعيت اصلاح معرفي تر عنوان لاندې د جمعيت اصلاح کارونو، څانګو، ادارو، رسنيو او تعليمي مؤسسو په اړه لنډ معلومات وړاندې کړل.

د سيمينار دريمه ورځ د سهار په لمانځه پېل شوه، وروسته د جمعيت اصلاح د مهاجر زون مسؤول استاد حسبان الله متوکل يو حديث ولوست او تشريح يې کړ. له وروسته د امام ابو يوسف دارلعلوم مدير مولوي صاحب مير عباس ګوهري د قرآن درس چې موضوع يې( عمل صالح) و وړاندې کړ.

د سهار په نهو بجو (د افغانستان اوسني جريانونه) په موضوع باندې ګردی مېز پيل شو چې په کې دکتور عبدالباقي امين، دکتور فضل هادي وزين او داکټر وحيدالله مصلح ګډون درلود. دوی د هېواد په اوسنيو سياسي جرياناتو رڼا واچوله او ګډونوالو ته يې ګټور او هر اړخيز معلومات وړاندې کړل.

له ګردي مېز وروسته ښاغلي استاد امين الله معتصم د بشائر النصر ( د بريا زېری) تر عنوان لاندې خپله موضوع وړاندې کړه.

د سيمينار په وروستيو شېبو کې استاد عبدالفتاح جواد په خپله موضوع (څرنګه يو غوره بدلون رامنځته کولای شو) خبرې وکړې.

د غونډې په پای کې د جمعيت اصلاح ختيز زون فعال ورونه تقدير شول او له دې وروسته د جمعيت اصلاح د مرکزي شورای رئيس قدرمن استاد نصير احمد نويدي ورونو ته يو لړ لازمې سپارښتنې وکړې، سيمينار د استاد شکرالله فدايي په اوږده او هراړخيزه دعا پای ته ورسېد.